# فهرست

## د زبور لوستونکو ته

کله یو وېښته هم زما سترګو ته پرده شي
کله دواړه کونه راښکاره په یو نظر شي

سخته ده اوږده د عشق لار خو کله کله
لار د سلو کالو په یوه اسویلي سر شي

خپل کوشش کوه او د میدان لمن کړه ټینګه
کیږي چي مراد درته په لار مخې ته در شي

## لومړۍ برخه

تېر شومه له دره، د کور حال مي برملا اووې
څنګه قلندر یم نا ویلی مي صفا اووې

## دعا

خدايه! د سينې دننه زړه باخبر راكړه
وينم چې باده كښې نشه داسي نظر راكړه

زه داسي بنده يم چې د بل په ساه ژواك نه كړم
يو كور زيړېدلى اسويلى د سحر راكړه

زه عظيم طوفان يم دا تنګ چينې بۀ څه كړم
لوى ميدان د خوړ او د كمر او د غر راكړه

غواړې؟ چې د شنو مستو څپو سره اخته سم
منځ كښې د موجونو اطمينان د ګوهر راكړه

تا لكه شاهين د پلنګانو په ښكار پرېښوم
كلكې پنجې راكړه، همت راكړه، وزر راكړه

ځم چې د حرم د طائرانو ښكار اوكړم
غشى چې تا ويشتى لا سورى كړي ځيګر راكړه

خاورې مي په نور د داؤدي نغمو رڼا كړه
هره يو ذره د زړه له سوزه شرر راكړه

# غزلي او قطعې

## (2)

په سینه کښې مو زړه سوونکې تمنا له کومې راغله؟
پیاله خپله ده، پیاله کښې دا صهبا له کومې راغله؟

زه منم چې دنیا خاوره ده او موږ یو موټې خاوره
په ذرو کښې مو دا سوز و تمنا له کومې راغله؟

نظرونه مو پرېوزي په ګرېوان د کهکشان
دا جنون له کومې راغلو؟ دا غوغا له کومې راغله؟

**(3)**

يو غزل اووايه بيا۔ بيا ورکې نغمې پيدا کړه
مړژوانده زړونو کښې ځو نوې ولولې پيدا کړه

حرم او دير او کليسا و بتکدې تشي دي
دې نيم کشو سترګو کښې زر رنګه فتنې پيدا کړه

هغه شراب چي زما خاورې ته يې اور ور کړ کړو
دی نوو۔ نوو شاه ځلمو ته ځو پيالې پيدا کړه

چي په سينه کښې زړګی کړ کړي هغه نې را واخله
تند او تراخه شراب چي ويلي کړي پيالې پيدا کړه

د عجميانو نيستان* کښې صبا تيز چليږي
يو داسي ساز چي ترې نه وڅاڅي لمبې پيدا کړي

**(4)**

* ځنګل

اې چې ګرموې زما په سوي آه و ناله
پورته کړه زما په چيغو مړه هزار ساله

خپل زړه به څه ستايم چې د ژوند په مستو ميو
مسته شوه، ژوندۍ شوه، خاورېـ خاورې پياله

پرانزه په ساه مې د غونچې د زړګي غوټه
کړه مې په صبا تازه داغونه د لاله

خيال مې له سپوږمۍ له مشترې له مهرو تېر شه
څه ته غلی ناست يې ښکار کړه دغه غزاله

ستا د در ګدا دی بې عزته درنه نه شي
هسې ته دبل له چينې ډکه کړې پياله

(5)

ته له موتې خاورې سل نغمې پورته کوې
ځان نه مې نزدې يې ځان زما نه پټوې

پټ د صبا څپو کښې راشې د باغ خوا ته
کله بوی کښې خور شې غوټۍ کله ټبنتوې

ستا نه بې خبره دی مغرب، مشرق ویده دی
وخت دی که دنیا کښې نوی نقش جوړوې

ځنه د شاهۍ زوړ لېونتوب لري په سر کښې
واخله چنګیزي نشتر که دا پرې سړوې

زه آزاد بنده یم هسي نه چي ببرته پټ شم
زلفې زولنې کړه که مي خوا کښې اوسوې

بې سوړ اسویلي نه خبر نه یم غزل څه وي
دا څه لکه پرخه په سینه مي څڅوې؟

**(6)**

سورو ختو کښې لرم زه، د سپین زړه سپینه رڼا
برندي سترګې لکه ستوري د جمال په تماشا

نه ګمان کوې چې ګونديې له نغمو پرېوتې ساز يم
دا نغمې غلې پرتې دي د مضراب په تمنا

چې خاکيانو ته نور ورکړم چې نوريانو ته سوز ورکړم
داسې سره بڅري راکړه داسې سوې نغمې را

تب و تاب و درد و غم مې همګي نيازمندي ده
ته الله يې بې نياز يې وبه نه رسې په دا

نه مې ځان چا ته څرګند کړو نه مې ځان د چا نه پټ کړو
يو غزل مې داسې اووې چې هر غم کړي هويدا

**(7)**

څه مستې نغمې څه آوازونه دردېدلي
ما په ترو ډک د ژوند خمونه دي وېشلي

تا يو بېنوا ته هغه نوی ژوند ښکاره کړو
لا يې د چا زړه کښې آرزو نه ده ټوکېدلې

تا په يو نظر زړه و ځيگر کښې مقام ونيو
چا چرته د ده نخښې په يوه غشي ويشتلي

څه سپړلی دي وښيلو زما ناشنا نظر ته
غر په سمه ژاړم نوي زر که راوتلي

يو فقير په دوه کونه کښې نه شي ځايېدلی
څه که دوه شاهان نه دي يو ملك کښې ځايېدلي

**(8)**

واړوه د کفر و دين په سر د رحمت جام
عامي کړه جلوې دي په دنيا ماه تمام

واوروه زړې نغمې او جام ته گردش ورکړه
بيا زموږ مجلس کښې روان و وينه خپل جام

ولې دي د خپلې بلې ناست طائران پرېښو؟
ولې دي د باغ په طرف وړې د زلفو دام؟

شکې د عراق تږي پټي د حجاز وچ دي
بیا د حسین وینه غواړي ستا کوفه و شام

خپله ځان ته لار ښايي رهبر نه مخکښې کیږي
مینه د چا لاس کښې ورکوي نه خپل زمام

ما د دیر په خوا کښې بې خبره اسولي کړل
څو مي په حرم کښې موندی نه ؤ خپل مقام

زه چي د سپرلي د قافلو نه مخکښې راغلم
اوس د پنجرې کوټ کښې ځان ته وایم خپل پيغام

**(9)**

ځکه مي غمجن آواز بې باکه غم انګيز دی
کور کښې مي بسری دی او باد د سحر تېز دی

عشق سر و سامان نه لري بې له یوه تبره
زړه چوي د کاڼي پاك له ويني د پرویز دی

دا د يو هوشيار نکته مي پرېوتله زړه ته
مست نظر د ترکو له خوږو خبرو تېز دی

راشه لږ مي کښېنه تر بالښته چي له غمه
نن د تا د میني د دې ترږي جام لبرېز دی

باغ مي تول د خپل سوي زړګي په اور رڼا کړو
سو ر په شبنم نه شو چي لا باد د سحر تېز دی

پټې غمزې هم کور ورانوي خو زه پخپله
هغه نظر غوام چي بېباکه او خونرېز دی

دواړه د دې خاورې اوسېدونکي دي دا ولي؟
عقل خوښ د خاورو په مجلس زړه کم امېز دی

ما ته نظر وکړه هند کښې بل څوک داسي نشته
څوی د برهمن اشنا له روم او له تبرېز دی

%%%

## (10)

که مي زړه که مي نظر دی واړه خوند دی د لیدلو
څه خطا که مي له کاڼي یو صنم او تَراشلو

ته د حسن په شعلو کښې پټ نظر تنبوې بېرته
بې له سوړ اسویلي شته دی بله لار د صبرېدلو؟

څه به وشي که څو ګامه د کاروان تر سرایه واخلې
یو تموتې۔ تموتې زړګی دی سرمایه د درېدلو

یو د سوز غزل مي اووې چي مي زړه لږ په آرام شي
د اور تاؤ لا څه زیاتیږي د بڅرو په ختلو

دا ژوندی زړه چي دي راکړو د پردو سره نه ښایي
سترګي راکړه په شین کاڼي کښې د سرو لمبو لیدلو

د زړګي هر ذره کښې یو مستي ده یو سرور دی
دا یو غم دی په زړ برخې په څه رنګي ووېشلو

د طوفان درنو ځپو کښې هغه سختې خطرې نشته
کوم خطر چې عشق په غلې کنارو کښې ولیدلو

بې نیازه په مستۍ کښې له شاهانو داسې تېر شوم
لکه سپینه سپوږمۍ تت کړي واړه ستوري په ختلو

%%%

## (11)

شته شاهین د عقل تېز و تند او خوش رفتار دی
پټ په دې ځنګل کښې ښکاري هم په انتظار دی

کلکې لوندې غوټې بې تکلیفه پرانستای شي
داسې خل-ک شته دي چې لایق د دغې کار دی

خوله که پرانستی شي د خبرو اشنا نشته
زار دی د هغو چې راز په زړه کښې لري زار دی

زه يې رنګ ـ رنګ وسوم په سل سوزه په سل واره
زار شم له دې سوي چې له هر سازه همکنار دی

موږه موتې خاورې د ژوندي زړګي لايق شو
دا ژوندی زړګی او موږه خدايه! د تا کار دی
دا د زړه لمبه زما د زړه د کور رڼا ده
دا د کور رڼا ده چې ټول کور پرې تار په تار دی

عقل جهان بين د افلاطون مې په کار نه دی
زړه لره چې شوخ او نظر باز او ناقرار دی

**(12)**

څه دی دا جهان واړه، دير دی د پندار زما
قيد ساتې جلوې د دې، ديده يې بيدار زما

زه په يو ساده نظر، ټول جهان رانيسمه
يو حلقه ده جوړه کړه ګردش پر کار زما

غیب و که حضور دی دا، سیرو که سکون دی دا
ټول زما د زړه جادو، څوك وایي اسرار زما؟

هغه بل جهان چي ټول، ربېي پکښې کر خپل
نور و نار یې سم ساتي، سبحه و زنار زما

زه د تقدیر ساز یمه، سل نغمې لرم پټې
چرته چي مضراب رسي، هلته به وي تار زما

اې! زه ستا له فیضه یم، ستا نښان آخر څه شو؟
دواړه کونه ما جوړ کړو، ستا جهان آخر څه شو؟

## (13)

رن-ګ رن-ګ د بلبلو نغمې فصل بهار هسي
لر کړه پرده، وايه غزل، ورك کړه خمار هسي

خپلو مستو سترګو او زما اوښکو ته ګوره
اوروره زما پر زړګي برف و شرار هسي

ووايه سپرلي ته چي زما په خيال پسې شي
اونولي پر غر پر سمه نقش و نګار هسي

غر پر سمه هر شنکی زما په اوښکو لوند دی
خپل مي کړل د تا د چمن هر ګل و خار هسي

دا د خاورو ختو جهان سم زما په زړه کړه
خپل تياره رڼا بيل کړه زما په اختيار هسي

زړه له هر چا ځانته له دوو کونو بې نیازه
در به په محشر شم ستا حضور ته تیار هسي

زوړ بلبل دي ما په نغمو مست په باغ کښې اووې
هیڅا په چمن کښې کړی نه دی چغار هسي

## (14)

تل د شته او نشت له کشمکشه يې رها کړم
زه د تا رضا په هره ښه بده رضا کړم

څومره تاؤ را تاؤ شو عشق په دې بې کره للمه
زر دانې يې اوکرلې زه يې را پيدا کړم

خدای خبر دي ما ختو کښې څه ښکاربدل ده ته
زر ځله يې ویلي کړم، زر ځله يې صفا کړم

خوا او شا دنيا خس و خاشاك او زړه مي اور دی
څومره په سختو د امتحان يې مبتلا کړم

وا مي خله پياله له لاسه ووتم له وسه
يووړم د ساقي غمزو له هوشه يې خطا کړم

## (15)

پاڅه په اوبو د ژوند تازه کړه مړ جهان
اور زموږه سوړ کړه او خپل اور شعله فشان

غونډ په میکده کښې دي تش جامي او ځان ورکې
اوسي مدرسه کښې په زړه مړه په خوله ځوانان

فکر مو غلام دی دین مو نقل و روایت دی
ځکه مو سینه کښې زړه هدف دی بې نشان
دواړه یو منزل ته ځي د هر یو خپل کاروان دی
عقل يې په چل۔ چل بوځي عشق کشان۔ کشان

عشق غورزوي آ خوا ته خېمه د شش جهاتو
لاس لګوي پورته په طناب د کهکشان

**(16)**

ته واېي جوړ خیال د استانې لرم
کار له جوړوونکې د خانې لرم

زه که مړه شعله یم کم مې مه ګڼه
تب د ابد تاب د زمانې لرم

مخکښې ځمه روستو شاته نه ګورم
نیت د صبا طرز د زمانې لرم

مینه مې طوفان مینه کشتۍ ساحل
زه نه سفینې نه کرانې لرم

اور را وروه خو ومې نه سوځې
نوی یم لا غم د اشیانې لرم

"زه په دې امید چې ته په ښکار راشې"
منډې له حلقې د زمانې لرم

ته که فرمایې دوی ته بې وبخښم
څو جامه شراب د میخانې لرم

**(17)**

سپور په کږو۔ کږو کتو تېرېږي
لا ړمه وخت مي د نيوو تېرېږي

زه به د يار د جلوو څه ووايم
لکه شعله په الوتو تېرېږي

تر هغې مياشتي رسېدل مشکل دي
مينه د ستورو په اوږو تېرېږي

د وخت پردې دي نااميده نه کړي
د نظر غشي له تبو تېرېږي

زما شبنم هم د طوفان څپه ده
د کهکشان له کنارو تېرېږي

که تر خلوته لاړې سترګې بند کړه
چي هلته زړونه له کتو تېرېږي

زه به څه ووایم د خپلې ژړا

زړه مې له سترګو په ټوټو تیریږي

## (18)

ښه ده که په عقل باندي ووهې شبخون
یو ټکی د زړه ښه دی له علم فلاطون

پیر د میخانې راته پرون دغه راز اووې
خپلې اوښکې ښې ګڼه له باده ګلګون

هغه فقیري چي زړونه خپل کړي بې له توري
ښهٔ ده له شوکته د دارا او فریدون

ښکلي مضمونونه وایه دلته میکده کښې
وایه خانقاه کښې افسانه وي که افسون

بې د طوفانونو له احسانه که چینه کښې
یو چپه ستا پورته شي دا ښه ده له جیحون

ستا سېلاب د ښهر په کوڅو کښې نه ځايېږي
دا طوفان بند ښه دی په خلوت کښې د هامون

مه وايه اقبال غزلخوان ته چې کافر يې
لږ- لږ سوداې دی له مکتب يې کړه بېرون

## (19)

یا مسلم ته مه وایه چي سر پر تلي کښېږده
یا دی زورِ بدن کښې نوې ساه کړه را پیدا
دااوکړه یا دا

یا اجازت ورکړه چي یو نوی صنم جوړ کړي
یا د زناریانو سینه ډکه کړه له تا
دااوکړه یا دا

یا یو بل آدم چي د ابلیس نه څه خو کم وي
یا دې امتحان ته بل ابلیس کړه را پیدا
دااوکړه یا دا

یا نوی جهان یا تازه نوی امتحان
څو پوري به خپل کړي په موږه کوې بیا
دااوکړه یا دا

فقر راکوي؟ د بادشاهانو عظمت راکړه
عقل راکوي؟ د فرشتو طبعیت را
دااوکړه یا دا

یا زما سینه کښې ارزو مړه د انقلاب کړه
یا به بله واړوه دا ستا زړه دنیا
دااوکړه یا دا

**(20)**

عقل هم عشق دی او له ذوقه بې خبره نه دی
خو دا غریب له په دې مینه تېر له سره نه دی

ښه پرې پوهیږم، منزل څه دی، خو بس خیال دی زما
خو همت لاره کښې بایلل اوس کار څه غوره نه دی

هره لحظه به یوه نوې جولانګاه غواړمه
څو مي هر یو بیابان وتی له نظره نه دی

ما په دا دومره لیونتوب کښې ګرېوان وساتلو
هر لیونی داسي له ځانه باخبره نه دی

**(21)**

سوز و ساز ستا له تلاشه، ژوند پيدا له سوز وسازه
لکه مار مي چيچي لاره، که مي يو قدم خطا شي

جبرائیل سینه پرانستې، د مینو خوا کښې تېر شي
ګوندي چرته له دې اوره، یو بڅری ور عطا شي

ستا د میني په مستی کښې، هر حجاب پاره- پاره کړم
خپل نظر ځان ته پرده کړم، خپل نظر مي نا رسا شي

زه دي تا تلاش کښې ورک شم، که د ځان تلاش کښې ورک شم
عقل، فکر، سترګې، زړونه ستا په لاره کښې خطا شي

زه دي تا د باغ غوټۍ یم، که یو څاڅکی پرخه راکړې
ستا چینې به وچي نه شي، د غوټۍ زړګی به وا شي

**(22)**

نن په دې محل کښې، چې شراب شته نه ساقي
څوك دی چې در وېخښمه، څو څاڅکي باقي

څوك چې خواږه زهر څکي، د سرو زرو په جام کښې
کله به خاورين کنډول، کښې اخلي ترياقي

اور مې له سينې خيزي، څه بل کړم څوك جليا کړم
بد دي وکړو را دي کړه دا دومره مشتاقي

خړې کړې مغرب چينې، د علم و عرفان واړه
يو تياره کړه جوړه مشايي او اشراقي

زړه "اناالمسموم اناالمسوم، ژاړي او عقل
وايي "ما عندي، يترياق ولا راقي"

څه که ملايي که دروېشي که سلطاني ده
څوك په سالوسي* ګټي، او څوك په زراقي%

داسې وران بازار کښې، چې صراف په سترګو ړوند دی
خوار هغه غمی وي، چې کړي زياته براقي

* مکاري. % ټګي

**(23)**

راکړه ساقي! راکړه يو شعله تېزه نمناکه
بيا مي ګډ په خټه قيامتونه د دنيا که

ده په يو دانه د غنم و ويشتم په مځکه
ته مي په يوه جرعه اوچت کړه له افلاکه

ورکړه ترخه تېزه مرد افګنه پياله عشق ته
ګډ يې پاتې شوی رېښ تلې کړه له ادراکه

فکر و فلسفې په غرو دروند او په کار سست کړم
اې خضره! له دې بارونو سپکه زما ملا که

عقل په دې ګرمه پياله ويلې شو، نه تود شو
اوس هغه غمزه غوارې بېباکه او چالاکه

خلق په کشمکش کښې د امید و نااميدي دي
واره بې خبره کړه له ګردشِ افلاکه

رېږدي د خزان ځولۍ کښې پاڼې د ګلونو
پاڅه دا زېړې وڼې شنې په سپرلي بیا که

**(24)**

هغه مستۍ اوبه راکړه چې لالا ترې نه ټوکيږي
زما خاوره هلته کښېږده چې سپرلي چرته وريږي

د فيرنګ تورو پيالو مې د خرد لارې تياره کړې
ستا راهي ته نظر ورکړه چې تر تا در ورسيږي

يو بې شکه يقين غواړم زړه مې تن-ګ شو له شکونو
د هوا هره څپه کښې لکه خس له ځايه خيژي

څو بڅري د آرزو دي کله وي او که نه وي
زما شپې ته ستوري ورکړه چې په يو مخې ځليږي

تا قلم ګوتو کښې راکړو چې شاهي نقشونه جوړ کړه
راته هغه تندی راکړه چې دا نقش پر جوړيږي

**(25)**

پاك زړه د نظر له هره نقشه صفا راغلم
يو پاكې معنىٰ پسې ساده* معرا راغلم

كله ـ كله عقل د جنون د لار رهبر شي
زه څيري ګرېوان د عقلمندو له خوا راغلم
كله له ما تاؤ شي كله زه له دنيا تاؤ شم
خلاص مي كړه له دغه كشمكشه تر تا راغلم

دلته ساقي نشته هلته سوز د طلب نشته
ستړى له مجلسه د صوفي او ملا راغلم

دغه صحرايي به شي پكار ستا د خاصانو
زه شاه ته بېباكه مخكښې كېږم كه بيا راغلم

**(26)**

دا زما بې قيده زړه دى په ايمان كښې كافري كړي
د حرم درته سجدې كړي د بتانو چاكري كړي

* ساده، صفا

د عمل د كمي پنګې تله خپل ځان ته درنه كړي
د الله سره بازار كښې د قيامت سوداګري كړي

**غواړي دا چې اسمان مځكه دي د ده په مراد چليږي**
**دا د لاري موټې خاوره د مولا برابري كړي**

كله حق سره اشنا شي كله حق سره په جن‌ګ شي
كله۔ كله حيدري كړي كله۔ كله خيبري كړي

له هر رنګه بې نيازه په رنګونو آلوده شي
دا كليم ګوره په يو ځاى ساحري پيغمبري كړي

دور انديش عقل يې خپله له نظره جنون واخلي
بيا سره د دې جنونه بې خطره نشتري كړي

**ځان ته كله رسيداى شي دا مړ ژواندى تن اسانه**
**زر۔ زر كاله ديري ښخې په مقام آذري كړي**

**(27)**

ته له شاعره مستي چيغې په محشر څه غواړې؟
ته چي پخپله هنګامه يې شور و شر څه غواړې؟

زه دي اشنا کړم، د نغمو مستو موجونو سره
د دې سينې نه سمندر غواړه ګوهر څه غواړې؟

زه بې حضوره سجدې نه شم کولای، نه شم کولای
زړه مي راوړی دی زياتي له دې کافر څه غواړې؟

**(28)**

نه مي خيال ته جنګ راځي د کفر و د ايمان
نه مي زړه خوړلی په خوبونو د رضوان

زه که مي څوک وکني يو ستا له خيال ډک دی
تار په تار جلوې لکه سپوږمۍ پر بيابان

## (29)

وارہ مرغان ستا دي که ښایسته وي که ښکاري
ستا جوړ کړی ژوند دی که نوري دی که ناري

دا بیدار زړګی او موتی خاوره او نظر
ستا سپینه سپوږمۍ ده ستا شب ګونه عماري

ستا راکړی فکر دی په زړه دی که په خوله دی
ستا دریاب دی ستا ده د ګوهر و تاب داري

زه هم هغه ګرد یم چي نه رسي تر هیڅ ځایه
تا لاله پیدا کړو او تا ابر بهاري

زه خو تش قلم یمه، نقشونه ټول له تا دي
نن دی که پرون ؤ، ټوله ستا ده ګل کاري

ډیري دي ګیلې مي خو په خوله مي راتلای نه شي
ستا وفا جفا ده ستا یاري او عیاري

## (30)

**ښه دی، ښه دی له زر رنګه پارسايي**
**يو قدم تلی پر لار د اشنايي**

راشه۔ راشه په سنيه کښې مي دمه شه
ستړی۔ ستړی له محنته د خدايي

ته يې چرته او دا زه په کوم مقام يم
لږ مي پوه کړه د خپل ځان په رسايي

ياد کړه لږ هغه د ميني کتل ياد کړه
پرېږده پرېږده ياره! دا بې پروايي

تېره شپه راته په غوږ کښې سپوږمۍ ووېل
صبر۔ صبر شه په دې نا رسايي

دا هم ښه واېي خرمینو کښې حرام دی
صبرېدل، په غم وهلې جداېي

غوټه شوی زړه مي ستاسو مخکښې کښېښنو
بویه دا چي څه خو حل وفرماېي

**(31)**

زما پر زړه باندي د ده تاخت و یرغل اووینه
دا مړه کول او سوځول او رغول او وینه

داسي زړه نشته چي له دې پلوشو نه ځلیږي
زړو آئینو کښې د یو مهر ځلېدل او وینه

چي په یو لاس د باچهانو خزانې غونډوي
له بې نیازه فقیرانو بې بایلل او وینه

چي د دانا په زړه او فکر شبخونونه وهي
بې دا نشانو ته د ده ډال غوروزول او وینه

**(32)**

بوخت دي په طلب کښې زما دل دی
غم د قافلې او د منزل دی

څه شو هغه تندر چي نی و سوځي
فکر مي د کشت او د حاصل دی

اوس مي دا کشتۍ په طوفان ګډه کړه
زړه مي لا په طمع د ساحل دی

سول او سول، او نه رسېدل ژوند دی
بنه دی چي تلاش کښې د محمل دی

څوک چي له دوو کونو را بهر نه شو
ډوب په فرېبونو د باطل دی

یو جلوې مي سترګې مړې نه کړې
کوم ځای کښې علاج د درد دل دی

**یار ته مي قیصه کړله اوږده شوله**
**زړه مي لا در مانده په ویل دی**

**(33)**

تېر شو تېر د ژمي وار
را ژوندی شولو بهار

صبا ګل ته وږمې ورکړې
له نسیمه د جوی بار

د لالا ډیوې شوې بلې
پر صحرا پر مرغزار

زړه مي موړ دی له ګلونو
ګرېزانه له بهار

کله ډوب وي په خپل غم کښې
کله سر وي په چغار

چې مي سوز د زړه کم نه شي
هيڅوك نه غواړم راز دار

## (34)

بې نیازه له منزل او له قرار یم
اجنبي یم مسافر د هر دیار یم

سحر موټي ایرو وې د صبا باد ته
"د صحرا په چپاوونو مړ شرار یم

نرمہ نرم قدم ږده زما پر خاورو
چې د مستو کاروانونو خوږ یادګار یم

لکه پرخه زما هم اوښکې را توی شوې
زه هم خاوره یم او پروت یم ره ګزار یم

ورو مي غوږو ته له زړه نه آواز راغلئ
زه د ژوند د شنو رودونو کوهسار یم

ازل جورِ زما له تېره تب و تابه
د ابد بنا د شوق د انتظار یم

**ته د خپلې موتي خاوري فکر مه کړه**
**ستا قسم چې بې پایانه بې کنار یم**

## (35)

مست د نظر، په مست شراب یم
بې می خراب یم، بې می خراب یم

شوق مي زیاتیږي، څو چي ښکاریږي
ښکاري که پټ وي تل پیچ و تاب یم

تار د رباب مي، اور شي په لاس کښې
اور یمه اور یم ټول، تب و تاب یم

ځان مي منزل دی، ځان مي مراد دی
ځان نه جدا یم، خانه خراب یم

**څو د مشرق نه، لمر پورته نه شي**
**زه لکه ستوری، پاتې له خواب یم**

## (36)

زما شپه د سپین سحر کړه، په رښتیا چي ته آفتاب يې
چي پیدا لکه آفتاب يې، ښايي دا چي بې حجاب يې

ته زما د درد دوا شوې، په زړګي کښي مي رڼا شوې
له نظره مي په تېښته، ولي تل پښه په رکاب يې

ته قرار د بې قرارو، ته عيار د کم عيارو
ته دوا د دلفګارو، خو مونداى نه شې ناياب يې

غم و خوند د محبت تل، لري دوه رنګه اثره
اوس به سوز وي اوس به درد وي، اوس به مست اوس به خراب يې

زما زړه چرته ؤ؟ که نشته؟ نن زما سينه کښې نشته
د زړګي قيصه مي وايه، ته خبر يې که هر باب يې

په لوېي مي ستا قسم دى، چي بل هيڅ ارمان مي نشته
خو بس دا چي دې کونترې ته يقين ورکړه چي عقاب يې

**(37)**

ستا په میخانه کښې مي ساقي څوک اشنا نشته
زه جوړ د راتلونکې زمانې اول آدم یم

کله مي دا زوړ سوی کالبوت، کړې موټې خاورې
کله مي اوبه کړې، بیا له اوره سره سم یم

زوړ شان و شوکت او هغه زوړ جام جم راکړه
زه ویزار د نوو هنګامو نه د عجم یم

## (38)

د دردمندو په دنیا کښې، وایه ته څه کار لرې؟
په دې تب و تاب پوهېږې؟ زړه لرې؟ نګار لرې؟

ته له سرو روانو اوښکو، څه خبر یې چې خپل ځان ته
د شبنم ګوهر پر پاڼو، د لالا نثار لرې

له دې ژونده به څه وایم، چې په سوال غوښتلې ساه ده
د دې ژوند په غم خبر یې؟ د ساګانو شمار لرې؟

## (39)

ستا په لیدو که زه ورکېږم نالیدلې ښه یې
د تا د مینې سودا ګرانه شوه که ما غواړې

خبره سپینه کړه د پټ پټونې ورځې لاړې
د بل په خوله به خبرېدو چې دا او دا غواړې

څه ځان ساتې چي د دې دومره بې نیازیو سره
د خپل وجود په ګواهۍ وینه زما غواړې

د بندګۍ مقام جدا د عاشقۍ جدا دی
نوري سجده کړي د خاکي نه زيات تر دا غواړې

زه به دا خپل بې قدره مس په محبت کیمیا کړم
چي زه درځمه څه پیشکش خو به صبا غواړې

**(40)**

ستا په نور رڼا شو، د جهان شام و سحر
دا لمر او سپوږمۍ او غر او سمه بحر و بر

ته په هغه مست یې، چي نظر د یې اشنا شو
زه غواړم هغه، چي یې لیدای نه شي نظر

**(41)**

راکړه هغه زړه چي مست په خپله پیمانه دی
واخله هغه زړه چي له خپل ځانه بیګانه دی

راکړه هغه زره چي تمامي جهان را خپل کړي
اخله دا چي بند د کم و بیش په افسانه دی

ما ښکاري بهر کړه د تقدیر له دې ترکشه
غشی نا ویشتلی کله ښخ په نښانه دی

ژوند نه ستړی کیږي د دنیا په رانیولو
یو جهان مي ونیو او بل مي نښانه دی

**(42)**

خپله موټی خاوره ستا په لار کښې دوړوم
دا امید لرم چي تر اسمان یې رسوم

څه وکړم د علم و د دانش په وچو ځانګو
داسي ازغي نشته چي په زړه یې ځایوم

غم د جدایي زما د میني اور تازه کړو
مرمه، که دا اور مي په سینه کښې مړ کوم

ګډه مي په وينه کښې مستي ده ستا د مينې
داسي مي در نه دی زړه چي بيا يې ګرځوم

تا زما په پاکه تختۍ نقش مدعا کړ
اوس مي دومره پوه کړه چي يې سمه پاسوم

ستا په مخ کښې کله چي زما غزل څوك وايي
دومره قدر وايه چي "دی زه هم پېژنم"

**(43)**

زړه چي دي راکړی اوس يې ډك کړه له يقينه
جام زما رڼا کړه زيات له جام جهان بينه

دا تراخه شراب چي را تويېږي زما جام ته
زيات يې کړه رندانو ته له شاتو له ګبينه

## (44)

د ستا د ميني فسانه ناکس ته وېلای نه شم
د لمبې تاب و تپش خار و خس ته وېلای نه شم

تا راته ذوق د وينا راکړو راته واېي وايه
چې مي په زړه دي هغه هيڅ يو کس ته وېلای نه شم

د زړه د سره مي د سوز ډکې نغمې راخيژي
ګل ته به يې وايم دا خو زه قفس ته وېلای نه شم

که شوق مي تل تر تله نه ؤ، عجيبه به وي دا
په دغه رن-ګ خو دې قيصه يو کس ته وېلای نه شم

## (45)

ځومره ښې وې هغه ورځې د بهار و چنګ و نی
ستا په لاس کښې صراحي وه زما لاس کښې جام د می

چې زما خوا ته نزدې شې په خزان کښې سپرلی راشي
چې مې ته په خوا کښې نه يې سوړ- سوړ وسوځي سپرلی

بې له تا زه هغه ساز يم چې هر تار يې شکسته وي
چې ته راشې له سينې مې نغمې خېزي پې به پې

ما د شوق تر محفلونو څۀ را وړی دی خبر يې؟
يو باغ ګل، يو نېستان چغې او يوه خمخانه يې

بيا ژوندی کړه هغه مينه چې مينو ته ژوند ورکړي
د دومي فقيران کښېني پر سرير باندي دکی

عزيزان مې خوشحالېږي چې ملنګ تر کوره راغلو
زه ستومانه چې د علم اوږدې لارې مې کړې طی

**(46)**

سترګې مې ستورې وروي ګرېوان کښې
له اسمانونو مې نظر تېرېږي

پر مځکه اوسم خو له ستورو بر يم
د لمبې ژوند راسره نه ښاييږي

زه د دې ورځو شپو نه، نه جوړېږم
د ما نه دا شام و سحر جوړيږي

د اسمانونو ښيښې تشې شولې
بله مينا راکړه ستا څه کميږي

دا رهگذر زما دا بل زما دى
جنون مي دوو کونو کښې نه ځاييږي

**(47)**

مشرق چي اسمانونه، راولي په خپل کمند کښې
له ځانه بې خبره دی، بې سوزه بېنوا دی

د ده په تياره خاوره کښې، د ژوند لمبې اوړدې دي
په غاړه ولاړ ګوري، د طوفان په تماشا دی

بې اوره دی بې سوزه، بتخانه ده که حرم دی
او پير د ميکدې، اخته په عشق و په هوا دی

خرد د مغربيانو، پروت مجاز ته په سجدو دی
په رنګ و بوی کښې ډوب دی، نابينا دی او بينا دی

ګردش کښې له اسمانه، تېنتوو کښې تېز له مرګه
چالاک و بې مدار، و کلانکار و بدنوا دی

مشرق واره خراب دی، مغرب زیات له دې خراب دی
عالم واره بې ذوقه بې تلاشه بې وفا دی

ساقي راشه! می راوړه، محفل جوړ، میخانه لړ کړه
بیا موږه واړه مست، په خپل اشنا اشنا نظر کړه

**(48)**

هسي نه چي زړه مي کشمکش ته شي اوزګار
بیا دي را خورې کړه ول۔ ول زلفې تار په تار

تا مي په سینه کښې هغه سره لمبه پیدا کړه
لمر، سپوږمۍ مي وسو په ترخو د انتظار

ستا د لیدو میني د بتانو دستور کښېښو
مینه په تکۍ تکۍ قرار کړي امیدوار

هله به د مست زړګي خوږې ترانې وایي
خپل ګل ته چي اورسي مرغۍ د مرغزار

**کانې که څَوي په تېشه دا عجیبه نه ده**
**مینه په اوږه اوچتوي واړه کهسار**

**(49)**

زړه مې په جن-ګ دی له روزګاره سره
چینه ده ژاړې د کهساره سره

څرګند په جن-ګ دی او پټ- پټ په جن-ګ دی
ناپايدار د پايداره سره

په دې صحرا او غر کښې ځان ته پروت یم
نه د رازدار د غمګساره سره

واړه بې سوزه بېنوا بې شوقه
دا ابشارونه د جويباره سره

بې سوزه ژاړې بې مقصده ژاړې
دا بلبلان د دې شاخساره سره

زما د داغ تر سوزه نه رسيږي
سوی ژړګی د لاله زاره سره

د تا محفل د تا ساقي نه لري
څه مناسب له بې قراره سره

**(50)**

په وينا د تا يې پرې نه ښو کار خپل
در واپس مي کړلو زړه بې قرار خپل

دا څه زړه دی چي د ساه په شمېر اخته دی
په خپل لاسو کښې يې نه دی روزګار خپل

زه د زړه شوم، تا له شوق د نمايشه
زر په ډاګه دا غمی کړو ګزار خپل

سپوږمۍ ستوري ګيله من دي ته خبر يې؟
چي دې خاورو ته دی ورکړو شرار خپل

په سينه کښې مي دا غشی غنيمت دی
چي له ښو به پورته نه کړي شکار خپل

**(51)**

ټوله تمنا په یوه ټکي کښې ځايیږي
ما د تا په مینه اوږد کړی خپل بیان دی

ته د مشتاقانو ژبې نیسې خبر نه يې؟
میني وربخښلی هر نظر ته یو زبان دی

چرته هغه نور چي خبر ورېي د بل څه نه دی
چرته دا خاکي چي په ځولۍ کښې يې اسمان دی

یو وړه ذره که مي کمیږي له وجوده
تل تر تله ژوند به پرې وانخلمه چي ګران دی

زه ستا بې پایانه شنو څپو سره اخته یم
نه مي کناره، نه مي ګوهر د زړه ارمان دی

ستا له دې معنا چي لکه پرخه را وریږي
خپلو اسویلو ته مي جوړ کړی بل جهان دی

**(52)**

ځو به خوروې په مخ پردې د صبح و شام
پورته شه خورې کړه پلوشې ماه تمام

سوي کښې داسي خوند دی چي زما نه به جام غواړې
ته که لږ خبر شوې په مستۍ د دې مقام

ما د ژوند په ساز د ده د اور لمبې تازه کړې
نم د پرخې ورکړه چي شي لوند د لاله جام

عقل پانې- پانې لټوي مینه خبر شوه
تېز مرغۍ په چل کښې دانه یوسي پرېږدي دام

چرته دا نغمې او چرته زه ټولې بانې دي
ګرځم په ځه چل را تېزوم د اوښو ګام

وخت د سپینو- سپینو دی خو زه په چل- چل وایم
ځه وکړم تر اوسه مي ملګری دی لا خام

## (53)

لا د ساه په شمېر اخته يم، لا په پيچ کښې د روزګار يم
د درياب په شان فرياد کړم، کنارو کښې را حصار يم

د درياب له زورهيڅوک، په امان په ارام نشته
د صدف په تنهايي کښې، زه د خپل ځان نګهدار يم
د هغې ګوهر چي پروت دی، زما زړه زما سينه کښې
له صرافه تپوس مه کړه، چي زه خپله خپل عيار يم

څوك زما د ويرانۍ نه، د خراج په طمعه نه دی
د دوحي په غاړه ناست يم، قلندر يم شهريار يم

بل زما په دې سينه کښې، عجيبه ده عجيبه ده
څوك خبر دی چي دا ته يې، که د ځان سره دو چار يم

د آدم له تورو خاورو، د تقدير پرده کړه پورته
زه د تا په لار کښې پروت يم، د خپل ځان په انتظار يم

**(54)**

په فریاد شونډې نه پرانزمه اثر نه لري
غم نا ویلی ښه دی هر سړی ځیګر نه لري

حرم او دیر څه کوې هر ځای کښې خبره یوه ده
خو پټ زما او د تا راز دی څوك خبر نه لري

څه عجیبه د نه لیدو ده دا زموږه دنیا
کله د اور لمبې لري کله شرر نه لري

تا زما زړه کښې ځان ته ځای وکړو د سترګو په لار
خو داسي لاړې چي لا سترګې هم خبر نه لري
یو پوهېدونکی جوهري چي په ګوهر را نغلو
اوس يې په تا باندي سپارمه څوك نظر نه لري

خرد افروز مي پیمانې چي فیرنګیانو راکړې
لکه د لمر دي مګر پرخه د سحر نه لري

**(55)**

زه د پلوشو غوندي تارـ تار راغلی یم
ځوك خبر دی څنګه پر دې لار راغلی یم

تا زما د زړه د غم قیصې رقیب ته وکړې
خپلو اسویلو نه شرمسار راغلی یم

لرې دي له مخه کړه نقاب چې لکه لمر
ډك له ستركو ستا په انتظار راغلی یم

ته مې ارادې په یقین كلكې كړه چې زه
جن-ګ ته بې پیاده او بې سوار راغلی یم

**ته نه یې خبر چې ستا د لارې نظر څه کړي**
**سر په دعاګانو ستا په لار راغلی یم**

**(56)**

خدایه د شمس و د قمرا دا خپل جهان ووینه
ذره کښې جوړې غلبلې دي بیابان ووینه

په یو سینه کښې بې پایانه حسن ځای نیولی
لمر دی پټ شوی په شلېدلي ګرېبان ووینه

د بنیادم زړه دی د میني په بلا اخته کړو
په دې ځنګل کښې دی دا اور شعله فشان ووینه

وینځي زاړه- زاړه داغونه د هستۍ له جامو
څومره سختۍ خوښوي دا داغيي دامان ووینه

زموږه موټۍ خاوره ځان ته بل اسمان جوړوي
خواره ذره او دا تعمیر د بیابان ووینه

## زبورِعجم دويمه برخه

"د سدره" سمسوري ځانګې! خارو خس د بوستان نه شې
د هغه نه که منکر شې خو منکر چي له ځان نه شې

دواړه عالمه ښکارېدای شي له مینا چي لرم
هغه نظر څه شو چي وکړي تماشا چي لرم

بل لیونی به را پیدا شي بیا به ښار ژوندی کړي
سل هنګامې به شي پیدا له دې سودا چې لرم

کم عقله غم د شپې د تورو تیرو ولې کوې؟
لکه د ستورو د زړګي د داغ رڼا چې لرم

ما خپل مجلس ته ګډوې ښه ده خو زه ویرېږم
د تا به خوبنه نه شي دا شور و غوغا چې لرم

**(1)**

پاڅه! د آدم د راختو وخت شو
خاورې ته د ستورو د سجدو وخت شو

هغه راز چې پټ ؤ د هستۍ زړه کښې
اوس یې د وینا د ګفتګو وخت دی

**(2)**

ستوري او سپوږمۍ د شوق په لاره هم سفر دي
پوی او ادا فهم و خوش نظر و باهنر دي

خدای خبر چي څه ويني د خاورو په ډېري کښې
شايي اسمانونو ته ده موږ ته په نظر دي

**(3)**

**په يو نفس د غوټۍ غوټه پرانستی شي د زړه**
**د لاله زړه ته رسېدای لکه صبا کولای شې**

زندګي څه ده؟ د ځان قيد کښې د جهان را وستل
ته لا په قيد کښې د جهان يې کله دا کولای شې

د ازل ليک دی لمر، سپوږمۍ به درته سر ټيټوي
ته لا خبر نه يې چي څنګه څه په چا کولای شې

**که ته زما د ميکدې نه يو پياله پورته کړې**
**د موټي خاورو نه د بل جهان بنا کولای شې**

ځنګه دي کړه خپله سينه بلې ډيوې اقباله!
څه چې خپل ځان سره دي وکړلو په ما کولای شې

**(4)**

ته که د میني کرانه غوارې
په زر لمبو یو زبانه غوارې

زه د الوت په لذتونو پوه شوم
ته په چمن کښې اشیانه غوارې

د اشنایانو لمن تېنګه نیسه
که یو نظر محرمانه غوارې

بې لېونتوبه های و هوی کوې
په وچه بزم شبانه غوارې

ته هم شوخي او دلبري زده کړه
که مې غزل عاشقانه غوارې

**(5)**

وخت خو یو روان دوان قاصد د دل آرام دی
داسي پیغامبر چي سر تر سره یو پیغام دی

مه کوه ګمان چي ستا نصیب کښې جلوې نشته
شوق دی په سینه کښې لا نیم ګړی دی او خام دی

دا منم چي ته لکه شاهین بلند پرواز یې
خیال لره چي زورِ تجربه کار ښکاري او دام دی

کله جبرئیل دی موټي خاورو ته رسیږي
نوم یې اوچت شوی دی په دې چي بلند بام دی

ته د خپلي ساه په شمېر ژوندی یې خبر نه یې
ژوند د شپو او ورځو د جادو ماتوو نام دی

زه د مغربي علم و دانش په باب کښې وایم
ښه دی شور فریاد خو چي تر څو نظر ناکام دی

زه لا د هلال د چلیپا په غم کښې نه یم
دروند مصیبت نوی بل په زړه کښې د ایام دی

## (6)

نور به د یار د سادګیو درته څه ووایم
خپله زما په خوا کښې ناست ؤ د درمان یې اووې

څه یې د میني اووې بې له دې چې نه شم وېلای
که زره پرې ډېر خوشحالېدو او په شان۔ شان یې اووې

ښه هغه کس دی چې را کوز شو په ضمیر د وجود
یو څو ګوهر یې را بهر کړو او اسان یې اووې

خفه پرې مه شه له جهانه یې بهر نه ووځي
چې څه یې ګل نه شو لیدای مرغ نالان یې اووې

د شوق پیغام چې یې هر چا ته بې حجابه وایم
د شبنم څاڅکي ګل ته وراغلو پنهان یې اووې

که مي خبرې تار په تار دي څه عجیبه نه دہ؟
چا چې د دې زلفو څه اووې پرېشان یې اووې

## (7)

عقل چې غوبنتونکی او میندونکی د هر څیز دی
ګرمه تماشه یې را نیولې په نظر ده

پاکه جلوه غواړي له سپوږمۍ او لمره تېر شه
هره یو جلوه دلته لړلې په نظر ده

%%%

## (8)

د هغو ځلمو غلام یم چې د میني غلامان دي
د شیخانو غوندي نه دي چې زړه تنګي او ځان ـ ځان دي

میخانې او مسجدونه د خپل زړه په محك ګوري
هغه زړونه چې بې رنګه د هر رنګه اشنایان دي

نظرونه یې رسیږي له سپوږمۍ له ستورو پورته
نه په غم کښې د منزل دي نه په غم کښې د آشیان دي

په خلوت کښې يې محفل دی په محفل کښې يې خلوت دی
د هر چا سره نزدې دي د هر چا نه ګرېزان دي

دې صادقو عاشقانو ته په سپک نظر مه ګوره
اصل مال د قافلې دی دغه بې سر و سامان دي

غلامانو ته يې داسي آزادئ ور وبخښلې
چي اوس بې رمې شپونکي دی برهمن دی که شېخان دي

پياله پورته کړه چي وايي دلته سره شراب حلال دي
دا حديث کمزوری ښکاري خو درانه۔ درانه راويان دي

**(9)**

باغ کښې سور لاله په وينو رن-ګ دی لا تراوسه
مه غورځوره ډال له لاسه جن-ګ دی لا تراوسه

هغه مصيبت چي سل فتنې ترې پيدا کيږي
پاتې په زانګو کښې د فيرنګ دی لا تراوسه

اې چې په آرام په غاړه ناست يې پاڅه۔ پاڅه
کار دی له ګرداب او له نهنګ دی لا تراوسه

مه کښېږده تېشه له لاسه کار د عقل نه دی
ډک په سرو لعلونو زړه د سنګ دی لا تراوسه

کښېنه چې څو نوي مقامونه درښکاره کړم
پور په نوو۔ نوو نغمو چنګ دی لا تراوسه

پورته نقش ګړ چې وکتل زما جنون ته
وې ويل چې ده ته ميدان تن-ګ دی لا تراوسه

**(10)**

تکيه به بحث و په تقرير او په بيان هم کوئ
د حق کارونه په شمشير او په سنان هم کوئ

داسي هم وي چې د خلقې لاندي کړي زغرې پټې
مين په هر يو حال کښې مست وي په دا شان هم کوئ

چې جهان زوره شي پاک يې وسوځئ او لري يې کړئ
له هغې خاورو نه بنا د بل جهان هم کوئ

په يو نظر د ژوندونه ټوله سرمايه قربان کړي
دا سوداګر سودا د مينې په تاوان هم کوئ

څه چې کوئ د هوا موج د سپکو پخو سره
داسي کانې کله په غر په کهکشان هم کوئ

مينه خرڅيږي په بازار کښې د ژوندون په بيه
په دې سودا کښې اکثر ګټه لکه زيان هم کوئ

د دې دپاره مې فرياد وکړو چې ته را ويښ شې
کني دا مينه بې فرياد و بې فغان هم کوئ

**(11)**

دا درته چا اووې چې پټې وغزوه کښينه
مسته شنه څپه شه له خپل ځانه طوفان جوړ کړه

پاڅه له چمنه د پړانګانو په ښکار لاړ شه
غر له خېمو ډك كړه له صحرا ګلستان جوړ كړه

پورته شه دا لمر، سپوږمۍ په خپل كمند كښې ګير كړه
ستوري كړه را مات او پر رونق د ګرېوان جوړ كړه

پوه يم چې شراب د خودۍ تېز دي او تراخه دي
وګوره خپل درد ته له دې زهرو درمان جوړ كړه

**(12)**

اخير به راشي قافلې له دې اوږده سفره
خضر د وخت به د صحرا نه د حجاز راشي

زه غلامانو ته سطوت د باچهانو بخښم
كه د محمود شعلې له خاورو د اياز راشي

ژوند په كعبو په بتخانو كښې په عمرونو ژاړي
كه به مجلس د ميني يو اشنا د راز راشي

**د زمانې په زړه کښې نوي بنیادونه کښېږدئ**
**هغه فریاد چې د سینو نه د نیاز راشي**

**زما له لاسه رباب واخلئ چې بې وسه شومه**
**هسي نه وینه د رګونو نه د ساز راشي**

**(13)**

د باچهانو نه امید نه لرم
زه مسلمان یم بتان نه جوړوم

یو بې نیازه زړه لرم سینه کښې
چې فقیرانو ته شاهي وبخښم

څه چې اسمان مې په لاله ورويي
زه یې په پانړو د وښو وروم

له مهر و ماهه پلوشې نه غوارم
لکه پروین له بله سوال نه کوم

که لمر مي خپله را روان شي خوا ته
زه يې په بله لاره مخ واړوم

خدای راته داسي آب و تاب را کړی
تورو وريځو کښې شعلې پړقوم

خرونه په بام او په کوهي کښې يوسف
زه د شاهانو دستور بنه پېژنم

**(14)**

په نشه د فقر مست شه پيالې واخله د مادم
او چي پوخ شي بيا تر لاس کړه تخت د کې او جام د جم

وې چي دا بنايسته جهان مي وايه تا سره جوړيږي؟
ما وې ما سره نه بنايي وې چي مات يې کړه برهم

چي دې شاړو ميخانو کښې د مجلس ملګري نشته
د رستم سره جام اخله د مغانو سره کم

اې لاله د بيابانه! ته يوائې سوی نه شې
د زړه سوی داغ دی کښېږده په سينه کښې د آدم

ته د ده د زړګي سوز يې ته د ده د ويني تاؤ يې
که يقين دي نه شي ورکړه چاك سينې ته د عالم

عقل ستا د لار ډيوه ده، دا د لاري په سر کښېږده
مينه ستا د مستئ جام دی؟ مل کړه ځان سره محرم

**د ښو نه مي توييږي د زړه ويني د زړه غوښې**
**سره ياقوت د بدخشان دي لګوه يې په خاتم**

**(15)**

خدای خبر چي نوري څو فتنې دي په پړده کښې
اوس هم د هوس جادو کوي جهانداري

مينه ماتوي زمان۔ زمان بتان د عقل
مينه مسلمانه ده او عقل زناري

میر د قافلې یې ډېر کوشش او تل کوشش کړه
دلته حیدر هغه دی چې زړه کړي کراري

سترګي دي کړې پټې او بیا واېي جهان خوب دی
وغړوه سترګې چې دا خوب دی بیداري

جوړ کړه په خلوت کښې انجمن ځان ته چې مینه
یو پېژني، غواړي تماشې ته بسیاري

یو لحظه مضطر* شو او فتراک% کښې یې ځای وموند
ښه هغه هوسی ؤ چې یې زخم ؤ کاري

خپلې نغمې هسي وروم پر غر پر سمه
ګران مال مي ارزان شو توبه دا سست بازاري

**(16)**

* پرېشان. % هغه تسمه چې ښکاریان ورپوري ښکار تړي.

وتې فرشتې د اسمانونو له طلسمه دي
بيا يې هم نظر دی موتې خاورو ته نيولی دی

دا ګمان ونه کړې تولې مینې یو دستور لري
بې د لېونتوبه د لالا ګرېوان شلېدلی دی

ستا د شوق خبري د اشنا خلوت کښې کولې شي
هغه اسوېلی چې له هوسه پاك وينځلی دی

ته په يو ساعت کښې راختی له ستورو کسی شې
عقل دی په لاسو کښې ښکاري شاهين نيولی دی
لري دي نقاب کړه چا چې تا ته لن ترانې وې
اوس په انتظار کښې ستا جلوو ته اودرېدلی دی

چا په دې چمن کښې دا د سوز سوې نغمې ووې
سر غوټې تېټ کړی دی او ګل خولو وهلی دی

**(17)**

څه شولو عرب چي مجلس مست کړي شبانه
څه شوې د عجمو ترانې عاشقانه

ارتې خلقې ګرځي پيران تشې ښيښې خوا کښې
نشته څوك چي ولټوي ډکه پيمانه

دې چمن کښې هر څوك ځان ته خپله ځاله ګوري
نشته څوك چي وسوځوي سازه آشيانه

ډيرې قافلې راغلې او ودرېدې، ولاړې
هيچا دې خوا ونه کړو نظر محرمانه

**پاڅه د څپې غوندي طوفان سره اخته شه**
**غواړې کنارې؟ چرته کښې شته دی کرانه***

راشه چي انګور د تازه وينو نه را ډك شو
بيا به داسي نه واېي چي نشته ميخانه

* **کناره**

لنډه اوږده لار د زمانې په يو قدم کړه
تېر له زر او رو شه نوره څه ده زمانه؟

**(18)**

لکه صبا سحر را پاڅه خورېدل زده کړه
ګل و لاله پسې لمنې غونډول زده کړه
او د غوټۍ زړه کښې دننه رپېدل زده کړه

خلکې دي واچولې او بې له ذوقه وسوځېدې
وسوځېدلې او تر هيڅ ځايه ونه رسيدې
له ډېره شوقه او له ذوقه سوځېدل زده کړه

کافره! بيا دي په هغه پوري دا زړه وتړه
ځان ته نظر وکړه د هر چا نه ليمه وتړه
بل شان ليدل او په بل رنګې نه ليدل زده کړه

دا ساه دی څه ده؟ يو پيغام دی خو تا ونه ورېدو
د ستا په خته کښې يو نور دی چې تا ونه ليدو
بيا ليدل زده کړه بيا ليدل او اورېدل زده کړه

مورږ د عقاب سترګې او زړونه د شهباز نه لرو
لکه چرګان د بلې مينه د پرواز نه لرو
اې د کور چرګه! پاڅه نوي الوتل زده کړه
د کې د جم شاهي د لاري په سر نه خرڅوي
څوك د وښو په بيه وڼې او غر نه خرڅوي
د زړه د وينو په بدل کښې اخستل زده کړه

وژړېدې او تقدير هغه دی چې مخکښې څه ؤ
حلقه هغه ده ځنځير هغه دی چې مخکښې څه ؤ
نوميده مه شه په بل شانې ژړېدل زده کړه

لا سوی نه يې د لاله د زړه شرر راغونډ کړه
له ځانه تاؤ شه او دا ټول ځنګل او غر راغونډه کړه
لکه لمبه په نېستان کښې زغلېدل زده کړه

%%%

**(19)**

ويدې غوټۍ! لکه نرګس له ارمانونو پاڅه
کور مو تالا کړلو درنو۔ درنو غمونو پاڅه
د مرغو چيغې دي او شور د اذانونو پاڅه

هنګامه ګرمه ده د زړونو د تاوونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

لمر د سحر پې مخي ناوې ته جامې واچولې
د زړه د وینو نه يې سرې۔ سرې اوېزې واچولې
قافلې پورته شوې اسونو ته يې قیزې واچولې
بیدار نظره په کتو د جهانونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

مشرق تمام لکه غبار د سر راه دی او بس
خاموش فریاد دی او یا بې اثره آه دی او بس
هر ذره کښې غوټه شوی مړ نګاه دی او بس
د هند و سندهه او د عراق له میدانونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

د تا دریاب څه دریاب نه دی اسوده صحرا دی
د تا دریاب زیاتیږي نه په کمېدو لګیا دی

څه د آشوب او د نهنګ نه بېګانه درياب دی
له مرېږ سينې يې مست په شانې د موجونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

دا يو نکته ده او په دې کښې راز د کل جهان دی
ملك د بدن غونډي دی دين پکښې د روح په شان دی
بدن ژوندی او روح ژوندی په ربط د تن و جان دی
سره د شنو خلکو، نېزو او شمشيرونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

ته د ازل د وراثت امين يې ته امين يې
د دې جهان د مولا ته يسار او ته يمين يې
هم ته زمان يې اې خاکي بنده او ته زمين يې
د يقين جام وڅکه اوچت له ګمانونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

فرياد۔ فرياد له د لبرئ دل اويزئ د مغرب
فرياد۔ فرياد له شېرينئ او پروېزئ د مغرب
عالم تباه خراب ويران کړو چنګېزئ د مغرب
د حرم مشره! په تعمير د جهانونو پاڅه
له دې درنو۔ درنو۔ درنو۔ درنو خوبونو پاڅه

## له دې خوبونو پاڅه

**(20)**

**څه ده دا زموږه دنيا؟ بس يو موټی خاوره**
**څنګه په دا تلی نفس بيا په بېرته ورشي؟**

تکه توره شپه چي د غريب ګور کښې ويده ده
ستوري او سپوږمئ نه لري څنګه به سحر شي؟

زړه مي لا يزاله تب و تاب پسې تلاش کړي
څوك ترې نه خبر دي چې به برق که به شرر شي؟

دا د شوق نظر او اوچت خيال او د ژوند مينه
دا يقين مي نه شي چې به ټول خاورو ته ور شي

داسې تېر کړه ژوند چې که دا مرګ ـ مرګ دوام شي
خپله کردګار په خپلو کړو شرمنده تر شي

**(21)**

بيا په دې تلې په راتلونکې يو نظر په کار دی
پاڅه چې بل فکر او غم او بل خطر په کار دی

مينه د ورځو په ناقه اخپل محمل اچوي
مينې ته بل لباس د شام و د سحر په کار دی

پير زما وايي دا دنيا په يو ځای نه اودري
د دې له بدو او له ښو قطع نظر په کار دی

تا که دنیا پرې ایښی نیت دی د هغه کړی دی
اول له خپل سر او له خپل ځانه گذر په کار دی

ما وې چي زړه کښې مي ډېر لات او ډېر منات پراته دي
ده وې چي هر یو داسي بت زیر و زبر په کار دی

**(22)**

زما خیال هم اوسیدونکی د اسمان ؤ
په ځولۍ کښې د سپوږمۍ او کهکشان ؤ

دا خیال مه کوه چي دا خاوره مو ځای دی
چي هر ستوری یو جهان دی یا جهان ؤ

کله- کله یو مېږي ته را ښکاره شي
هغه راز چي نا خبره تر اسمان ؤ
درانه غرونه دي دا مځکه یې په شا وړي
زما موټی گرد د دې پر اوږو گران ؤ

**د لالا له داغه جوړې پيالې شوې**
**چې دی بې آوازه هم ډك له فغان ؤ**

**(23)**

تېر په ما قيامت کړلو نغمو هيڅوك خبر نه شو
ستا محفل کښې څه دي زېر و بم د ځای و راه

فکر مي په ختۀ کښې د ميني سره ګډ دی
تل نيمګړی اوسم پوره نه شوم لکه ماه

**شونډې دي را بندي کړه د هجر سوی دي خپل کړه**
**مينه فرياد نه کړي چې له ځانه شې آګاه**

ځان لمبه کړه مخې ته دي خس و خاشاك سوځه
نه مومي خاکي د زندګۍ د حرم راه

ته شاهين يې څه له د بلې د چرګو مل شوې
و زمايه* وزر دي ستا الوت نه دی کوتاه

زه د موجوداتو شبستان کښې اورکی يم
ځای پر ځای رڼا کړم لږه۔ لږه او ګاه۔ ګاه

**ووې په غزل کښې اقبال حال د خودۍ ووې**
**دا نوی کافر له بتخانو نه دی آګاه**

**(24)**

دا ډک جام زما يادګار کله د جم دی
زړه زما نچوړ بنيبنه کښې د عجم دی

لکه موج آدم وجود پسې تاويږي
لا تر ملا۔ تر ملا په منځ کښې د عدم دی

* و ازمايه

دا جادو راځه چې مات لکه خلیل کړو
په دې دیر کښې بې له تا هر څه صنم دی

که په زړه د زمانې ورننه نه ووزې
تماشې ته خپل نظر پرېښول ستم دی

ورکېدل هم په دې لار کښې یو مزه ده
ښه ده دا چې منزل لرې پېچ و خم دی

تغافل چې زه يې پرېښوم تماشې ته
د هر رنګې التفاته سره سم دی

**زه اګرچه بتخانه کښې یم لوی شوی**
**هغه راز وایم چې زړه کښې د حرم دی**

**(25)**

**زه د صحرا لاله په باغ کښې وده نه شم کولی**
**ما چرته غر ته او صحرا او بیابان ته یوسئ**

زړه لومبړه شوم، له ځانه بې خبره شومه
اې چاره ګرو! دا مزرى مو نیستان ته یوسئ ○

په دې سینه کښې مې یو ټکی ؤ او ورک شو رانه
اګرچه زوړ یمه ما بېرته دبستان ته یوسئ ○

غلی رباب یم خو یو څو تازه نغمې لرمه
چې بیا مې وچیړي ما هغه غزلخوان ته یوسئ ○

زما د شپې رڼا کوو ته د زړه داغ کافي دی
دا فانوسونه مو د بل چا شبستان ته یوسئ ○

ما غلامانو ته ښیلو د شاهۍ رازونه
ډېر ګنهګار یمه دا عذر مې سلطان ته یوسئ ○

## (26)

تازه خبري کوم يو مي په مطلب نه رسي
جلوې خورې شوې او نظر په تماشا لا نه ړو

تېر شه د دې بنيبنه خانې نه لکه کاڼی تېر شه
ورك هغه کاڼی شه چي بت شو تر مينا لا نه ړو

زاړه تبوتې۔ تبوتې کړه بيا نوې بنا وتړه
ځوك چي د "لا" ګرداب کښې ورك شو تر "الا" لا نه ړو

ته د کليم نه سبق زده کړه چي دانا د فيرنګ
د درياب زړه اوچوو، اور ته د سينا لا نه ړو

مينې زما د زړه نه زده کړه درد و سوز و تپش
دا زما زړه ؤ چي سور اوسو او بل خوا لا نه ړو

## (27)

دا څه مين دی چي خوله ډکه له فغانه لري
مين هغه دی چي په لاس کښې دوه جهانه لري

**مين هغه دی چي خپل ځان ته جهان نوی جوړ کړي**
**ځان ته جهان بې کنارو او بې پايانه لري**

دا دانايان د فيرنګيانو ويښ زړګی نه لري
منم چي سترګه به په هر اړخ نګرانه لري

مينه يې نشته دی او عقل يې چيچي لکه مار
زري جامونه ډک له سور لعل روانه لري

**زما د جام خيري راټول کړه ميخانه کښې نشته**
**داسي بوډا چي باده تنده ترخه ځوانه لري**

**(28)**

د ګل خوا کښې د مرغانو نيت بدليږي
په ګلشن کښې يې بل خيال په آشيان بل دی

ځان ته وګوره، دنیا نه ګیلې پرېده
که د تا نظر بدل شو جهان بل دی

په غور وګوره هر دم دې میخانه کښې
جام بدل، ساقي بدل، پیر مغان بل دی

**سلام وایه زما میر د قافلې ته**
**لار منمه چې هغه ده کاروان بل دی**

**(29)**

موږ له خدايه ورك يو او هغه په جستجو دى
سر دى په طلب ګرفتار شوى په آرزو دى

كله د لالا پر پاڼو ليكي پيغامونه
كله د مرغانو په سينه كښې په ها هو دى

پټ شي د نرګس په مستو سترګو كښې ديدن ته
داسي غمزه دان چي هر نظر يې ګفتګو دى

سوړ سوړ اسويلى كړي هر سحر زموږ په غم كښې
ننه او بهر لاندي باندي په هر سو دى

يو خاكي ليدو ته يې كړې څو هنګامې جوړې
تشه يو بانه يې دا جهان د رن-ګ و بو دى

پټ هره ذره کښې دی تراوسه نا اشنا دی
سپین لکه سپوږمۍ خور پر ګلو او په کوڅو دی

دی خاورو کښې ورك د ژوند ګوهر دی خو چې څه دی؟
دا ګوهر چې ورك دی دغه زه یم که هغه دی؟

**(30)**

وينې د مزدور ورکړو لالا ته لعل و ناب
ظلم د مالك کړو د دهقان پټې خراب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

شيخ اوړدو تسپو کښې ښکار کوي مسلمانان
ګير کړو برهمن ساده کافر د ترك په تاب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

مير و سلطان دواړه جوارګر، دانه يې غله ده
روح له غلامانو تښتوي او دوی په خواب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

شيخ په جماعت کښې دی او ځوی يې مدرسه کښې
دی بوډا ماشوم، هغه زوړ وخت کښې د شباب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

ښته مسلمانه! له فتنو د علم و فن
ډېر دي شيطانان په دې دنيا او رب ناياب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

وګوره شوخي د باطل، حق ته مخکښې کيږي
ګوره شوپرک ته چي جنګيږي له آفتاب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

ګوره کليسا کښې يې عيسیٰ په دار اخته کړه
يوړو د کعبې نه مصطفیٰ ام الکتاب

## انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

ما د دغې دهر په ښيښو کښې دي دليدلي
زهر، چي ماران دي ترې نه ګډ په پېچ و تاب

# انقلاب

## انقلاب اي انقلاب

کله ضعیفانو ته قوت د پلنګ ورکړي
کله لمبې خېژي له فانوسه

# انقلاب

## انقلاب اې انقلاب

**(31)**

**په دې پوهېږم چې له پېچ و تابه نه خلاصېږم**
**خو دومره ده چې يوه ورځ به بې نقابه راشي**

يو ګزار راکړه چې ويده زړه مې له خوبه پاڅي
بې له وهو به نغمې کله له ربابه راشي

انګور سيراب کړه د سحر په يخو۔ يخو اوښکو
چې سينې سپينې پلوشې دي له آفتابه راشي

وړه ذره يې زه وېرېږم چرته ورکه نه شې
ځان دی پخته کړه چې شعلې دي له آفتابه راشي

ځان خاکي مه ګڼه ته خپل ګرېوان ته سترګې واړو
که يو ځير ورکړې ترې بهر به سل مهتابه راشي

که ور يې بند کړو د حريم په کاڼي سر ووهه
چې ترې بهر سره- سره لعلونه بې حسابه راشي

## (32)

په روڼ تندي په ښه او بده زمانه تېرېږه
په جال او باغ او په ق-فس او اشيانه تېرېږه

زه دا منم چې مسافر يې او لار نه پېژنې
بيا هم د مينې په کوڅه محرمانه تېرېږه

په هره ساه دنيا بدله کړه په بل شان يې کړه
له دې دنيا لکه بې فکره زمانه تېرېږه

**که درته مخ کښې جبرئيل او حورې لار ونيسي**
**څو کرشمې پر وروه دلبرانه تېرېږه**

## (33)

ژوند خپله سپيً کښې د ګوهرو جوړول دي
نه ويلي کېدل او په لمبو کښې اوسېدل دي

مینه له دې بې وره ګښته را وتل دي
میاشت لکه ښیښه له پاس آسمانه غورځول دي

دین او زړه له لاسه غورځول د شاهۍ کار دی
سر په سر سودا ده ځان ورکول او جهان وړل دي

لوی همت په کار دی فلسفې ته او حکمت ته
دوو کونو پسې د فکر توره را ایستل دي
بې تعبیره خوب نه دی مذهب د ژوندي زړونو
پاکه له دې خاورې دنیا نوې جوړول دي

**(34)**

اومي مونده لاره له دې ګښته د وتو
مخکښې شوم له فکر د سحر په اسویلو

تا خو اې شاهینه! ځاله جوړه کړه چمن کښې
هسې نه چې پاتې شې له پورته الوتو

ګرد شوې؟ په دې ځای کښې په آرام اوسېدل نشته
مل شه د صبا په لار کښې مه کښېنه د پښو

پرېږده شين آسمان د کهکشان له چينو تېر شه
زړه مري له منزله که منزل شي د سپوږمو

يو هغه بې رنګه بې پروا رڼا که نه وي
غر د سينا سپك راته ښکارېږي تر وښو

څنګه د مجلس لحاظ کوي و پټ۔ پټ سوځي؟
څه خبر يم زه شهيد د لارې د کتو؟

پس زما به شعر زما لولي دا به وايي
ملك بدل کړو يو سړي چې ځان يې پېژندو

## (35)

زه غيرت لرمه بې خدمته بدل نا خلم
مرم چې وابسته دي په تقدير زما تقصير شي

خيال مي ستا د ميني د مستۍ له بركته
دومره پورته ځي چې د لمر ستركې راته خير شي

زه له ړومبۍ ورځي په ګرداب او څپو ګډ يم
لږ كه درياب غلى شي، طوفان مي چاره ګير شي

څو ځله مي مخكښې جهان ګړ په شور او شر كړو
اور په عافيت پوري زما له بم و زير شي

**ځكه ترك * په غاړه د بتانو مخكښې ګډ شوم**
**شيخ مي له نيكانو د مستانو په تكفير شي**

---

* زنار % بنكار

کله له ما تښتي کله بيا مي خوا ته راشي
کله مي صياد شي کله- کله مي نخچير% شي

بې سوزه زړه کله برخه اخلي له محفله
پاکه تانبه راکړه چې زما په لاس اکسير شي

**(32)**

سترګې چې بینا دي اول خپل زړګې ته ګوري
رړوند جهان د زړه د آئینې نه بې پروا دی

تلونکی بې یقینه، لاره ورانه او شپه توره
څومره مشکلاتو کښې ګیر شوی رهنما دی

ځان له قاصد مست دی، رقیب مست دی، مین مست دی
حرف د دلبرانو پور په څو رنګه معنا دی

شك د کافرانو او یقین د مومنانو
څه وکړمه زړه مي په بلا کښې مبتلا دی

مستو څپو خپله کنارې ته کشتۍ راوړه
کښېنستم په امن چې طوفان مي نا خدا دی

خدای خبر چي چا ځپو ته داسي سترګي ورکړې
شګي باهر ولي ګوهر زړه کښې د دریا دی

هیڅ زما له سوزه نصیب نه شو د دې خلکو
ورك زما اکسیر هسي په خاورو د صحرا دی

زړه کښې که د نوې دنیا وي نو ر اوباسه
چاؤد د فیرنګیانو زړه له دې زړې دنیا دی

**(37)**

کم خل-ك پوهیږي په یارئ دلنوازئ
غرق شه ځان کښې وساته آبرو د عشق بازئ

مرم له دې چي ته سره د دومره نمایشه
پټې ساتې ما نه طریقې د عشق بازئ

څوك په دې نازکه نکته رسي بې ایازه
مینه د محمود زیاتوي درد د ایازئ

زه به هغه علم و فراست په هيڅ وانه خلم
کوم چي ناولده کړي ځلمي له تيغ بازۍ

واخلئ د رازي په عقل زور د حيدر واخلئ
دا ګوهر ارزان دی په هر نرخ چي يې ارزۍ*

ته که لرې يو موټی وزر يو څاڅکی وينه
راشه چي در وښيمه لار د شهبازۍ

ته لا دا ګڼې د خولې خبرې خبر نه يې؟
نوري په سينو کښې زېړوي نی نوازۍ

* اخلي، خريدن

**(38)**

دا علم چې ته غواړې مشتاق د کتو نه دی
لار کښې سترې پروت دی بې همته د تلو نه دی

دا آدم چې نقش د جهان يې له زړه ووزي
خوند د اسويلو لري او بې اسويلو نه دی

هر څو که سپوږمۍ مينې له سره آواره کړه
داغ يې په سينه کښې ځائېدلی د سوو نه دی

ما د ده له مخه چرې پورته نظر نه کړو
ده ته د خدای ورکړی لا توفيق د کتو نه دی

ښه قبا اغوستې اقبال کار د جهان وکړو
کار د درويشانو څه موقوف له خلکو نه دی

**(39)**

**د سحر په شانې سترګې د کتو پیدا کېدای شي**
**په دې خاورو کښې ځایونه د جلوو پیدا کېدای شي**

خپل نظر داسي تېره کړه لکه څوکه وي د ستنې
د ګوهر په زړه کښې لاره د ورتلو پیدا کېدای شي

نه يې دا جهان حجاب دی نه هغه جهان نقاب دی
که طاقت لرې نو سترګې د کتو پیدا کېدای شي
"ته د ونې په يخ سوري کښې د ځالې تمنا کړې"
که را والوتې ښکارونه د سپوږمو پیدا کېدای شي

## (40)

خپلو پیالو کښې دي شريك کړو بېګانه په مخه
د بل په نور دی وځلوله پیمانه په مخه

وڅکه څو جامه د مشرق د زوړ ساقي له لاسه
چي دي له خاورې نغمې خیزي مستانه په مخه

زره چي د شوي تمنا په تاب و تب خبر شي
له لمبو ځان ولي په شان د پروانه په مخه

جورِ د ژوندون ساز و سامان کړه د سحر په اوښکو
پټې به شارِ شي که ور نه راغله دانه په مخه

جام دي را وګرځوه پرېږده هنګامې د فيرنګ
زر قافلې لاړې په دغه ويرانه په مخه

**(41)**

مينه تلاش کښې وه آدم يې و موند
جلوې يې دې خاورو کښې ځای لري

لمر او سپوږمۍ او ستارې به ورکړم
په موتي خاوره چي زړګی لري

**(42)**

بیا مشرقیانو په دنیا نوي نقشونه جوړ کړو
د بتخانې په طرف مه ځه، چې بتان ټوټې شو

څنګه جلوه ده دا چې زړونه یې د لیدو په خاطر
لکه بڅري خړو خاورو کښې را وځلېدو

چرته دي هغه تورانیان چې یې دنیا لړزوله
د خپلو زړونو د سینو په تاؤ کښې خپله اوسو

ته هم په خپله خودۍ پوه شه چې ملګري د لار
د خپله ځانه سره غونډ شو له هر چا وشلېدو

**دنیا یو لویه قید خانه ده د مړزړو په خیال**
**یو دوه پیالې یې مستي نوش کړې له جهانه خلاص شو**

زه خو غلام یم د هغې بیدار همته سورو
چې په نېزو یې د اسمان ستوري اوچت واخستو

اوس فرشتې سجدو ته هغه شان اوزګارې نه دي
دغه نوريان په تماشو کښې د خاکيانو مست شو

## (43)

په عشق نازیږه مه چي شته يې د نیشت غم نه لري
بندي په قید کښې د حاضر او د موجود نه دی

**مینه که ووایي له سره تېر شه۔ تېر شه ترې نه**
**چي عشق محبوب دی او مقصود دی سر مقصود نه دی**

د سومنات په ماتولو کافري پخېږي
د بتخانو مجلس سوړ شوی په محمود نه دی

**دا میخانه او جماعت او کلیسا او کنشت**
**سل تماشې مي زړه ته جوړې کړې خوشنود نه دی**

د کهسارونو د چینو نه مي نغمې واخستې
یو اسویلی هم په چمن کښې غم آلود نه دی

ما ته رائحې؟ سوی زړه راوړه او ساړه اسویلي
اثر په تا کښې دی، نغمو کښې د داؤد نه دی

عیبونه مه لټوه ځان زما په جام وګوره
مینه پرې نه کړي هغه زړه چې غم آلود نه دی

## (44)

بېتابه زړه به مي ساقي په څو پيالو قرار کړي
دی کېمياګر دی او اکسير به په سيماب ووهي

زه نه پوهېږم چي سينه کښې مي دا نور که نار دی
دومره پوهېږم چي رڼا به يې مهتاب ووهي

په زړه مي غلې نغمې ورو۔ ورو چپاوونه کوي
ساز به له ذوقه ځان په خپله په مضراب ووهي

بې فکره اوسه، د اسمان دې بې اوبو صحرا کښې
داسي چينې دي چي شبخون به په سېلاب ووهي

چي نوش مي خورې نو له نشتره مي هم مه وېرېږه
نشتر په کار دی چي آدم ته رګ د خواب ووهي

## (45)

**خاورې به نورونو نه افزون[*] شي يوه ورځ**
**دا مځکه به پورته له ګردون شي يوه ورځ**

خيال زموږ چې لوی مو کړو په مستو طوفانونو
پورې به له دې بحر نيلګون شي يوه ورځ
ما مه پوښته خپله د آدم په معنا پوه شه
دا نيمګړی تکی به موزون شي يوه ورځ

**داسې به موزون شي دا پامال غوندې مضمون**
**زړه به د يزدان ورځنې خون شي يوه ورځ**

%%%

## (46)

دومره په خبر يم چې د عشق منکر کافر دی
نور څه خبر نه يمه د دين په مسلو

* **زيات**

دغه د حرم مسافرانو ته دعا کړم
خدای دي توفیق ورکړي د آدم د پېژندو

زه لا د ملګرو په تپوس یم خل-ک وايي
مخکښې مل د لاري ګوره بیا لاره د تلو

داسي د مغرب حکیم د خوند بدل پوره کړو
زیاته يې کړه د میو رښايي په جام د سرو

زر ځله تیارې د بې عقلیو ترې نه ښې دي
ځیني دانايي نه وي د زړونو د منو

ګرچه د خرد په پېچ و تاب کښې مزه شته دي
سپین د ساده زړونو یقین ښه دی له نکتو

پاکه مي د زړه تختۍ صفا له فلسفې کړه
زړه مي په نشتر د تحقیقونو وسپړدو

**زه د استانې نه د باچا را کناره شوم**
**خدای مې بې توفیقه خدای ته مه کړه په سجدو**

## (47)

ځان ته له هر چا کښېنه، صحبت د اشنا غواړه
خدای نه خودي غواړه، د خودۍ نه خدا غواړه

یو جلوه لره کرشمه کار نه شي کولای
عقل ته جدا زړه او نظر ته جدا غواړه

مینه خو ښیښې د کایناتو تشول دي
جام د جم ته لاس مه نیسه، لاس د وفا غواړه

لار له ازغو ډکه ده او تلونکې پښې- پښې ابلې
ځان ته رسېدل غواړې جامه د رضا غواړه
فقر چې کمال ته ورسیږي باچهي شي
تخت که د کی غواړې د پښو لاندي بوریا غواړه

مخکښې۔ مخکښې ګوره چې ژوندون تر کومې رسي
څه چې وو او تېر شو ټول پرېږده انتها غواړه

کله چې د وخت ګزار غمژني نغمې در کړې
ورو زما د میو جام کېده او مومیا غواړه

**(48)**

هر څه ته ګورې ځان ته نه ګورې
څومره ساده یې غافل* نشینه!

نور یې، قدیم یې، شپې د رڼا کړې
لاس د کلیم یې پټ په استینه!
ځان را بهر کړه له دې جهانه
ته زیات له دې یې زیات له هر شي نه

مرګ نه وېرېږې؟ زنده جاوېده!
مرګ ښکار کیږي ستا له یقینه

* بې غمه

صورت ګړي دي د ما نه زده کړه
بیا که جوړې ځان کار آفرینه

**(49)**

نه وربېږم زه، د حادثاتو نه د شپو
شپې چې سحر کیږي په ګردش د ستارو

ځان نه ناخبره وښته د ځان په دام کښې
مینه چې يې ځان ځرګندولو په هاهو

آه چې له زړه خیزي د ځیګر د سوو دپاره
مات يې کړو سینه کښې پرې يې نه دی تر وتو

نشته میکده کښې د فطرت له جامه غواړه
می چې نه ځایېږي د دې ډلو په ښیښو

هغه زړه چې وشلېدو له دوسته آرام نه کړي
نه د تا په دم نه په دانش د مدرسو

**(50)**

**ته څوك يې راغلې له كوم ځايه چې شين رنګې اسمان**
**د تا كتو ته خواره كړي ستركې ـ ستركې ستوري**

زه درته او ويم چې څه وې څه دي وكړو څه شوې
چې د محمود په ايازئ مي له زړه وينې اوري

هغه به څنګه مصلې له كهكشان جوړه كړي
چې د صوفي او د شاعر په خوله په بادو سور وي

فيرنګې ستا د فكر څو غوټۍ خو پرانستلې
اوس دی د بل رنګې نشې په سرو جامونو ګوري

تول د ميزان او د نامې اوږدې خبرې كوې
او حيرانتيا دا ده راغلی قيامت نه ګوري

ښه هغه كس دی چې سينه كښې يې حرم وليدو
ځان سره سوځي نه څۀ وايي او نه ځي، نه ښوري

**په دې مکتب او میخانه اعتبار نه شم کولی**
**زه سجدې نه کوم په هغه استانه چې نور يې**

**(51)**

هغه پاکه مځکه چې د درد سره اشنا ده
هره يو ذره لري د زړونو جلوې هلته

نه غوارې څوك هلته جام د میو له مغانو
خپله په نظر ماتوي ډکې بنيبنې هلته

ضبط لیونتوب کړه سر دی ټیټ کړه له ادبه
هوش کښې اوسه مه دې وړه شلیدلی خلکې هلته

## (52)

زاړه شراب او يا پې مخی جانان هيڅ شی نه دی
سترګو لرونکو ته دا حور و جنان هيڅ شی نه دی

دا چې محکم او پاينده ښکاري دا ټول به ورك شي
غر او صحرا او بحر و بر و کران هيڅ شی نه دی

د مغربيانو عقل يا دا د مشرق فلسفه
ټول د بتانو عبادت دی بتان هيڅ شی نه دی

ځان نه وېرېږه له صحرا په ويره مه تېرېږه
ته يې او نور دا باقي۔ باقي جهان هيڅ شی نه دی

په دغه لار کښې چې په سرو بڼو مې او کنسته
رودونه شکې او منزل او کاروان هيڅ شی نه دی

## (53)

دا قلندران چې په خپل ځان يې قبضه وکړه
اخلي له شاهانو قلنګ اوسي خرقه پوش

ناست دي په محفل کښې مهر و مه په کمند ګیر کړي
کښېني په خلوت کښې جهانونه در آغوش

پټ دي په ريشمو په کيمخابو په مجلس کښې
جن-ګ کښې شنه زمري وي خود آګاه تن فراموش
نوی نظام وبخښي دې دوه انګه اسمان ته
ستړي ستارو ته جنازې کښېږدي پر دوش

لرې زمانې کړو د صبا د مخ نقاب
مست دي ميخواران لا د زړې پيالې په جوش

خولې ته مې يو څو خبرې راغلې وېلای نه شم
څومره عجيبه ده چې ملا ناست دی خاموش

**(54)**

دو دسته تیغ یم او آسمان څرګند کړم
تېز يې کړم سخت يې کړم، را وېې ایستم

زه هغه خیال یم د خالق د فطرت
د ګل جهان يې وران کړو زه يې جوړ کړم

هغه شراب دي چې يې جام ویلې کړو
دا چې پيالې ترې نه د تا ډکوم

ما دا آواز په ګرمئ وپیژنئ
چې د سينې دننه ساه سوز وم

**زړې کشتئ د ادراك ماتې شولې**
**بچ دی هغه چې زه يې پوري باسم**

**(55)**

زه ذرې لکه بخرې سوځومه
سوځمه، ځلوم، الوزمه

له خپل لاسه د الماس سختي ټکړې زه
لکه پرخه څڅوم ویلي کومه

د نمود له ځایه داسي نغمې وایم
چي په نیمه شپه سحر را ویښومه

ورك یوسف مي له نقابه را څرګند کړو
دې بې وزرو ته اخسته ور ښیمه

میني مړو خاورو ته ورکړی لوندې سترګې
اوس بۀ زه د کتو مینه ورکومه

%%%

**(56)**

په دنیا کښې ورکېدل دي د خودیٔ نارسایي
د خپل غم سره اشنا شه پرېږده نوره اشنایي

ځو به ستا تندی سولیږي د شاهانو په دربار کښې
د خپل رب له شانه زده کړه بې نیازي کبریایي

د ځوانمردو ځوانه مینه یو ورځ داسي ځای ته رسي
چي يې پرېوځي له نظره دلبري دلربایي

ما په هغه آستانه کښې داسي سوې نغمې ووې
چي محرمو ته خوږه شوه له وصاله جدایي

زه له دغه غمه سوځم پېژندونکې سترګې نشته
سرږي بازار د میني د رندو بې پروایي

راشه مست قدم را واخله چي بېباکه پیالې نوش کړو
د رندانو په مذهب کښې روا نه ده پارسایي

څه له دې مسلمانانو چرته لاړ شه مسلمان شه
دوی په خپله خوښه کړي د کافرو خدایي

**(57)**

زه لکه لاله سوځم د تا په خیابان
اې عجمي ځوانه! ستا په ځان زما په ځان

فکر مي د ژوند په زړه کښې ډوب شو را بهر شو
تا ته مي را وئیستو یو څو فکره پنهان

پورته مي نظر له مشتري او مهره لاړو
بل حرم مي جوړ کړلو په دې کافرستان

ځان ته مي را غونډه کړه چي تېزه او تېره شي
سره لمبه خوره وره ده ستا پر بیابان

ور به یې کړي تش لاس د مشرق ته زما فکر
لعل مي را اخستی دی د تا د بدخشان

دا دی را روان دی ځنځیرونه به مو و شلوي
نوی ځلمی وینم له روزنه د زندان

اې له خاورو جوړو چار چاپېره رانه غونډ شئ
اور مې په سینه کښې دی د تاسو له نیران*

## (58)

زما له سوو اسویلو نوی سپرلی اباد شو
زما په اوښکو د وښو نه یاسمین ټوکیږي

زما په وینو د لاله د زړګي داغ تازه دی
لکه په مستو سرو شرابو چې پیالې ځلیږي

دومره اوچت پروازم لرم چې د اسمان په خوا کښې
نوریان اکثر غلي زما په تماشه اودریږي

آدم ترې ښۀ دی هر ځل نوې تماشه جوړوي
ستوري سپوږمۍ خو همېشه هغه کوي چې کیږي
خپله ډیوه مې ځکه بله کړه چې لاس د کلیم
نن صبا پټ دی په لستوڼي کښې ونه ځلیږي

---

* اور

**په سجده پرېوزه، د شاهانو نه مدد مه غواړه**
**د فقیرانو دستور دغه دی په دغه کیږي**

**(59)**

**دا کسان پرېږده چي يې خپله څه لیدلي نه وي**
**اوړدې۔ اوړدې خبري کار د نظر نه ورکوي**

خبري اورم د شاعر او د فقیر او کلیم
ونې به دنګې لوړي څه کړم ثمر نه ورکوي

د بتخانې رڼا چي پیر پرې دومره ډېر نازیږي
زرګونه شی پیدا کوي یو سحر نه ورکوي

له خپله خدایه ګیله من یم خو ویلای نه شم
زړه خو اوچت له سینې وړي او دلبر نه ورکوي

**په بتخانه، حرم کښې یو داسي ساقي نه مومم**
**چي ورکوي لمبې۔ لمبې یو شرر نه ورکوي**

**(60)**

ډېره موده پس مي د ساروان آواز په غوږ شو
بيا جوړې په دغه شاړه لاره کاروان راغلو

مال د سل کاروانو به په مينه اولجه ورکړم
ببېرته که يوسف مي د فرعون له زندان راغلو

## (61)

چیري د شاهین زرِه په ښکار کړي مرغۍ سوځي
ته لا فیرنګیانو نه د خیر طمع لرې

لعل که دی د پلار میراث کښې وموې نو څه پر
چرته هغه لطف چې د کاڼي زرِه چوې

ما ته د جهان د شته او نشت خبرې څه کړې
زه یمه، په بل څه مي کار نشته چې څه یې؟

هره ښیښنه رپي محتسب نه میخانه کښې
بې مینا د میني که پرې کاڼي ماتوې

ته وایې پرده خودي، وي به خو دا وایم
تاب د سترګو نشته دا پرده ونه شلوې

وچه شوه دا څانګه خو د دې پر سیوري لوی يې
دا بې غیرتي ده چې ترې ځاله نړوې

څه ځیر د غزلو چې زوړ ساز زړه نغمه وي
نوی غزل وایه که جهان پرې بدلوې

**(62)**

مات کړه د مغرب جادو او تېر شه له مشرقه
يو اورېشه نه لري دا زوړ نوې بها

داسي لکه پخه چي د باد مخې ته کښېږدې
لاړو سکندر ؤ کيقباد ؤ که دارا

ژوند په طريقه مجلس اباد ساقي ځان ځانته
ته په قافله کښې مل او بيل شه له هر چا

نه د لمر، سپوږمۍ نه زيات رڼا يې زيات منير يې
هرې يو ذرې پورې د اور سوې رڼا

هغه قيمتي غمی چي تا شيطان ته ورکړو
څوک به يې جبريل ته هم ور نه کړي په رضا

واخله پياله و يې څکه په چل او بېرته لاړ شه
موږه ميکده په کم نوشو کړه رسوا

**(63)**

ځنګه دا ښکاره جهان د رن-ګ و د بوی راز دی؟
پورته کړه نغمې چې ته مضراب يې او دا ساز دی

مست نظر په سپينو پلوشو باندي ښوييږي
ته وايې حجاب دی او نقاب دی او مجاز دی

راشه او دا شنې درنې پردې له مینځه لرې کړه
پاکې شعلې وینې چې نظر د چا پاکباز دی

ما ته دا خاکدان زما له هر جنته ښه دی
ځای د ذوق و شوق دی او حريم د سوز و ساز دی

کله هغه ورك شي کله زه له ځانه ورك شم
کله دواړه وينم دا څه راز دی دا څه راز دی؟

**(64)**

اې د خيابان لالا! زه هم د تا په شان يمه
زړه مې د غمونو نه چمن۔ چمن داغدار دی

دا سوي آهونه د خلوت صحرا کښې ښه دي
څه وکړمه زه؟ د انجمن سره مي کار دی

**(65)**

چي په اشناؤ سترګو زړه د لاله وينم
ټول ذوق و شوق وينم آه و ناله وينم

کښته او پورته هر خوا د ژوند ګرمي ښکاري
پر غر پر سمه پر خوړ دا غزاله وينم

**نه ژوند د ما سره دی او نه له ما دی ژوندون**
**هر ځای ژوندون ښکاريږي چي له کوم خوا دی ژوندون**

**(66)**

دغه جهان او هغه جهان
دا بيکران او آ* بيکران

* **هغه**

دواړه یو خیال او دواړه ګمان
زه يې لمبه یم دواړه د ځان

دا یو څو آنه هغه څو آنه
زه جاودان یم زه جاودان

دغه کوتۀ دی، هغه کوته دی
یو زه کره یم نقد روان

دلته کښې کښېنم، هلته کښېنم
بس یو لحظه او بس یو زمان

دلته کښې څه کړم او هلته څه کړم
آه و فغان او آه و فغان
دا مي رهزن دی هغه رهزن دی
دلته مي زیان دی هلته مي زیان

دواړه به جوړ کړم دواړه به سېزم
دا آشیان او هغه آشیان

%%%

**(67)**

سپرلی راغلئ ستړکي لامبي بیا په اور کښې د لاله
بیا له زړونو پورته کیږي اسویلي آه و ناله

د هغې میو څو څاڅکي د چمن خاوره کښې توی کړه
چي خزان ته بې پروا شي دا نرګس او دا لاله

دا د رنګ و بوی دنیا ده ولې زړه پېژني څه دی؟
یو سپوږمۍ چي له آفاقو غونډوي ځان ته حاله

**(68)**

دې صورت ګر چي ورځ او شپه جوړه کړه
ځان تر اخپلي تماشې رسوي

صوفي! یو څو قدمه دې خوا راشه
قدرت شېلو ته سامان خوروي

**سحر او ستوري او شفق او سپوږمۍ**
**ځومره جلوې په يو نظر خرګوي**

**(69)**

بيا دا زوړ شوی عالم ځوان پکار دی
هر يو وابنه کوه ګران پکار دی
دی موتي خاورو کښې نظر پيدا شو
د زړه دننه يې فغان پکار دی

دې زاړه لمر او سپوږمۍ هيڅ ونه کړو
د نوو ستورو بل جهان پکار دی

هر يو نګار چې مي تر سترګو راځي
ښه دی خوښه تر ځو چندان پکار دی

**خدای وايي داسي دی نور هيڅ مه وايه**
**ته وايې داسي دی، دا شان پکار دی**

**(70)**

نرګس په مستو سترګو ډوب په تماشه نه ؤ لا
د لاله زړه کښې دلته داغ د تمنا نه ؤ لا

خاورو کښې ساه وه تله را تله چرته زړه نه ښکاريدو
د ژوند کاروان اخته په سود ؤ په سودا نه ؤ لا

د ميکشانو د هاهو نه ميخانه خالي وه
د ميو ډکې پيالې وې باده پيمانه ؤ لا

د سينا سپينو پلوشو پټې ګيلې کولې
څوک د ايمن په خوړ کښې پروت په تقاضا نه ؤ لا

مينې د موږ له فريادونو هنګامې جوړې کړې
هيڅوک په دې غلي مجلس کښې د غوغا نه ؤ لا

## (71)

چا په دير کښې پورته هنګامې کړې او غوغا
واره زناريان لکه شپېلۍ دي په ژړا

**کور وي د شاهانو که جونګړه د فقير وي**
**هر ځای داسي غم دی چي کړي ځوانه ملا دوتا[1]**

چرته دی علاج چي په علاج مرض زياتيږي
عقل ټول حيله ده او جادو دی او سيميا2

بې له طوفانونو د آدم کشتۍ تلای نه شي
هر يو زره هزار ګيلې لري له نا خدا

ما نه خو د ژوند د سفر هيڅ پوښتنه مه کړه
درد سره عادت شومه او ځم غزل سرا

[1] **دوه برخه. 2 مداري توب.**

ځان مي د سحر د هواګانو سره مل کړو
خوند مي د ګل واخستو او تېر شوم په هوا

دا دنيا مي وکته په سترګو د سپوږمۍ
خور ګلو کوڅو کښې له ګلو کوڅو جدا

**(72)**

اې لاله د کوهستانه! اې ډيوې د باغ وراغ
ما ته وګوره چي درکړم درته زه د ژوند سراغ*

نه شوخ رنګ يم او نه بوی يم چي به الوزم بې ځايه
زه هغه يم چي ځايېږي هم په زړه هم په دماغ

دا مستي وي د شرابو په پياله کښې مستي نه وي
دومره ده چي شرابونه څکلی نه شي بې اياغ%

* **پته.** % **پياله**

**زړه روښن په سوي داغ کړه د وجود په توره شپه کښې**
**د خپل ځان پېژوند ګران وي که بل نه وي دا څراغ**

**شعلې! ونيسه سينه دي د صبا د باد څپو ته**
**يخه پرخه دی مړه نکړي سره لمبه د زړه د داغ**

**(73)**

زه آزاد بنده يمه، عشق زما امام دی
عشق زما امام دی، عقل مي غلام دی

جام زما ګردش کښې دی، ګرم مجلسونه دي
ستوری د مابښام زما، دا ماه تمام دی

ځان په نشت کښې ورك پروت ؤ، بې له تمنا و غم
مستې نغمې ما ورکړې، ګير زما په دام دی

اې د رن-ګ و بوی دنيا، دغه ملګرتيا تر څو
مرګ د تا دوام وينم، عشق زما دوام دی

ښکارې مې ضمیر کښې دی، پټ مې په ضمیر کښې دی
و مومه مقام زما، دا د ده مقام دی

**(73)**

بې خولې غوټۍ چې په پردو کښې یې د زړه راز ؤ
په انجمن کښې د ګلونو څو ملګرې کتل

د سپرلي باد یې ځان ته خوښ کړو، د چمن بلبلې
تکیه یې وکړه په هغو باندې چې څوک الوتل

**(75)**

ځان ته سجدې کومه، دیر او حرم پاتې نه شو
یو په عرب او دغه بل، په عجم پاتې نه شو

وچ شو لاله والوتو، رنګ او نم یې پاتې نه شو
غلې نغمې شوې د مرغو زیر و بم پاتې نه شو

زړه دنیا کښې یو هم نوی نقش نه وینمه
هیڅ نوی نقش جوړې پټ په عدم پاتې نه شو

ستوري اسمان کښې ګرځي يو انقلاب نه راولي
طاقت د ورځو شپو په پښو کښې د رم[✉] پاتې نه شو

لاس په پښه کښېناستلو سترې بې همته خفه
جوړ په سينو کښې د دوی ختم شو دم پاتې نه شو

يا د امکان کتاب کښې پاڼه تشه پاتې نه شوه
يا د قضا قلم کښې تاب د رقم پاتې نه شو

%%%

# ګلشن راز جديد

د تا په زړه کښې مي تازه نوی جهان را جوړ کړو
د تا د سترګو په ککو کښې مي نظر پيدا کړو

مشرق ويده ؤ چي ما پټ له شب بيدارو ستورو
په سرودونو د ژوندون نوی سحر پيدا کړو

---

[✉] منډه.

# ګلشن راز جدید

## تمهید

د مشرق بدن نه ساه لاړه
له روحه سوز لاړو نو دا لاړه
لکه تصویر يې بې د ساه نه ژوند دی
پوهېږي نه چې ژوند کښې څومره خوند دی
زړه يې د هرې مدعا نه پرې دی
ساز يې د سوز او د نوا نه پرې دی
اوس به په بل رنګې مقصود ووایم
دا به خواب کښې د محمود ووایم
د هغه شیخ د زمانې نه تر دې
هیڅ زموږ زړه ته ور نه کړې لمبې
کفن په غاړه پراته خاورو کښې یو
په یو فتنه د محشر پورته نه شو
تېر وو په مځکښې د دې پیرِ تبرېز
قیامتونه د فتنو د چنګېز
نظر مي نوی انقلاب ولیدو

ما راختونکی بل آفتاب ولیدو
د دې معنا نه مې نقاب لر کړو
او د ذرې لاس کښې مې لمر ورکړو
نه چې زه مست بې پیمانې یمه
فقط شعرونه افسانې یمه
په هغه کس کښې به هیڅ خیر نه وي
څوك چې په ما تهمت د شعر تړي
د دلبرانو په لار کار نه لرم
په سوي زړه کښې غم د یار نه لرم
تن مې په لاره کښې غبار نه دی
زړه مې د بل په اختیار نه دی
رقیب قاصد او دربان نه پېژنم
د جبرئیل له خوا خبرې کوم
دې فقیرۍ کښې د کلیم سامان دی
زما خلکه کښې د شاهانو شان دی
که خاوره یم پر صحرا نه ځایېږم
که یم اوبه پر دریا نه ځایېږم
د کاڼي زړه مې د ښیښې نه رڼي
زما موجونه ساحل نه خوښوي

پټ تقديرونه په پردو کښې لرم
زه قيامتونه په ځولو کښې لرم
ځان مي د ځان سره يو ځل تنها کړو
نوی جهان مي ابدي پيدا کړو
"ما ته له دې شاعري عار نه راځي
چي په عمرونو يو عطار نه راځي"
زړه مي په جنګ د مرګ د ژوند اخته دی
د ابدي ژوند په پيوند اخته دی
تن مي ستا روح نه بېګانه وليدو
نفس مي خپل رو غوندي در اوپوکلو
زړه مي له خپله اوره داغ په داغ دی
دا داغ د تا د تورو شپو څراغ دی
زما په خاورو يې زړه وکړلو
پر دې تختۍ يې بل خط وليکلو
د خودۍ مينه او خواږه يې راکړو
زه درته څه وايم چي څه يې راکړو
اول مي خپله دا خوند وڅښلو
بيا مي په ټول مشرق کښې و وېشلو
که دا نامه مي جبرئيل ولولي

نور به د ځان نه لکه ګرد و څنډې
له خپله ځایه له منزل به ژاړې
او د الله نه به څه بل څه غواړې
"داسي څرګنده ستا جلوه نه غواړم
نه غواړم نوره تماشه نه غواړم
دا همېشه وصال دې بېرته واخله
ما ته د سوې اسوېلو خوند راکړه
ناز و نیاز د بنیادم غواړمه
سوز و ګداز د بنیادم غواړمه

%%%

# سوال (1)

اول په دې حیران یم فکر څه دی؟
تفکر څنګه وي او دا له څه دی؟
کله صحي کله خطا دی ولې؟
کله طاعت کله ګناه دی ولې؟

# ځواب

په دې سينه کښې د آدم څه نور دی؟
څه نور دی دا چې غيب د دې حضور دی؟
کله يې ولاړ کله روان وينمه
کله يې نور کله نېران وينمه
کله اور اخلي له دليله ځنې
کله نور اخلي له جبريله ځنې
د روح رڼا دي د سينو رڼا دي
زيات د آفتاب له پلوشو صفا دي
خاورو کښې پروت دی له مکانه پاك دی
په ورځو شپو کښې له زمانه پاك دی
ژوند يې د ساه په شمېر شمېرلی نه شي
داسي موندونکی بل موندلی نه شي
کله وي سترې او ساحل ته پروت وي
کله درياب د ده په جام ځايېږي
هم دی درياب هم د موسیٰ لرګی دی
چې د درياب زړه ترې نه دوه ټوټې دی
له هوسۍ پاس په اسمان کښې ځري
د کهکشان په چنو ځان مړوي
پر مځکه کله پر اسمان روان وي

تنها په منځ کښې د کاروان روان وي
دغه تیاره او نور د ده احوال دی
مرګ و جنت و حور د ده احوال دي
ابلیس له ده آدم له ده څرګند شو
د دې جهان دا غم له ده څرګند شو
د ده جلوې دي چې نظر تښنوي
د ده جلوې د ده مولا هم غلوي
په یوه سترګه خپل خلوت ته ګوري
په بله سترګه خپل جلوت ته ګوري
که یوه سترګه پټه کړي ګناه ده
که غړوي دواړه نو لار صفا ده
خپلې چینې نه دریابونه جوړ کړي
خپله ګوهر شی او په تل کښې کښېني
هغه لحظه دی خپل صورت بدل کړي
خپله غواص شي او ځان بیا را واخلي
سل هنګامې لري او بې خروشه
رنا او آواز یې بې له چشم و ګو شه
د ده ښیبنه کښې زمانې پرتې دي
چې موږ ته ورو ورو په وار ښکارېږي

ژوندون له ده نه خپل کمند واچوي
کوزه او بره آ خوا دېخوا ښکارېږي
خپله په خپل کمند کښې ځان راولي
د ما سیوا مرئ کښې ساه بنده کړي
دواړه عالمه یو ورځ ښکار شي د ده
بند د ول ول کمند په تار شي د ده
دواړه عالمه که یو ځل راګیر کړې
آفاق به ټول و مري او ته به نه مرې
په دې میدان کښې سست قدم مه کښېږده
اول جهان د ځان دننه ګیر کړه
کمزوری ځان اوچت په ځان نیوو کړه
که مولا غواړې ځان ته ځان نزدو کړې
خپل تسخیر وکړه چې قبضه دي ځان شي
ستا په قبضه کښې به دا ټول جهان شي
یو ورځ به وي چې دا جهان را ګیر کړې
د آسمانونو سینې پړق وشلوې
سپوږمۍ دي پښو ته په سجدو را پرېوزي
ستا د موجونو په کمند کښې کښېوزي
دې بتخانه کښې پابندي نه منې

ځان له په خوښۀ خپل جهان جوړوې
په يو تلي کښې ټول جهان را اخستل
د نور و صوت و رن-ګ و بو نه وتل
کم زياتول او زيات بې زيات کمول
هر څه د خپل زړګي په تله تلل
غم او خوشئ پوري يې زړه نه تړل
د آسمانونو ساحري ماتول
په زړه په شان د يو غشي ورتلل
په دې اوربشو غنم نه بدلول
باچهي دا ده باچهي هم دا ده
دا دنيا دين دی او دا دين دنيا ده

%%%

# سوال (2)

علم د کوم يو سمندر ساحل دی؟
د دې له تله کوم ګوهر حاصل دی؟

# ځواب

ژوند يو درياب دی شنې څپې دي د دې
علم او پوهه کنارې دي د دې
مستې څپې او شنه موجونه لري
په کنارو صحرا او غرونه لري
څومره بې تابه وې څپې د دې
په ټوپ يې پرېښوې کنارې د دې
لارې اوړدې صحرا ته يې نم ورکړو
نظر ته يې خوند و کيف و کم ورکړو
څه چې يې مخې ته راځي صفا شي
ددې شعور له فيضه سپين رڼا شي
په خلوت مست دی صحبت نه خوښوي
ولې هر څيز و ته خپل نور ورکوي
اول اول يې په خپل نور منير کړي
بيا يې ورو ورو په خپل آئين اسير کړي
شعور نزدې کړلو ترې دې جهانه
جهان خبر کړلو له خپله ځانه
خرد له مخه يې نقاب پورته کړو

او بیا خبرو تر حجاب پورته کړو
د دې بدلو دینا کښې نه ځائیږي
دنیا د ده یو مرحله ښکاریږي
بهر له خپل ځانه جهان ویني
غر او ځنګل او بحر وکان ویني
دغه دنیا یو ګلدسته ده زموږ
دغه آزاده وابسته ده زموږ
خودئ په یو تار دنګه تړلي
مځکه، اسمان او مهر و مه تړلي
زموږه زړه ورته پټ پټ په یون دی
چې هر موجود مو د نظر ممنون دی
که څوك يې ونه ویني حال يې زار شي
که څوك يې اونه ویني چې کهسار شي
جهان زموږه په کتو غټیږي
بوټی زموږه په لیدو لوییږي
دا د ناظر منظور قیصې پټې دي
هره ذره التجا هسي کوي

%%%

# ق

زما شاهده! ما مشهود کړه ته
په یو کتته مي موجود کړه ته
د ذات کمال د شي موجود کېدل دي
او یو شاهد لره مشهود کېدل دي
عقل حضور نه بې خبره ساتې
د خپل شعور نه بې خبره ساتې
په جهان بې له ما رڼا نشته دی
جلوه د نور او د صدا نشته دی
ته هم د ده نه ملګرتیا وغواړه
سترګې د ده په پیچ و خم ونغاړه
او یقین وکړه چي شیران ښکاري
غواړي دې لار کښې دمیږو نه یاري
په دې یارۍ له ځانه ځان خبر کړه
اې جبرئیله! پیدا بال و پر کړه
ډېر ته د عقل په نظر وګوره
په تماشه د "احد" ځان خبر کړه
او خپل نصیب له پیرهنه واخله

بوی په کنعان کښې له يمنه واخله
خودي اکثر ښکار کوي لمر او سپوږمۍ
په خپل تدبير ګېروي لمر او سپوږمۍ
لکه اور ځان په دې جهان ورګډ کړ
شور په مکان او لا مکان ورګډ کړ

## (3) سوال

دا د ممکن واجب وصال څه دی؟
د دې نزدو او لري حال څه دی

## ځواب

درې مخی دا جهان د چون و چند دی
عقل د دې د بېشه و کم کمند دی
دا د اقليدس و طوسي جهان دی
زموږه عقل ته کافي جهان دی
اعتباري زمان مکان دی د دې
اعتباري مځکه اسمان دی د دې
لينده دي را کاږه آماج و مومه

نکته په دې کښې د معراج و مومه
نښته مطلق په دې دير مکافات
صفا مطلق دی يو نور السمٰوٰت
حقيقت لا زوال و لا مکان دی
مه وايه بيا چې عالم بې کران دی
ساحل يې "ننه" دی "بهر" نه دی
ننه کم زيات زېر و زبر نه دی
د دې "دننه" نه بالا نه زير دی
ولې "ماهر" د دې وسعت پذير دی
خرد ابد سره نا سازګار دی
"يو" دی په سترګو کښې د ده "هزار" دی
دا ګوډ سکون غواړي آرام لټوي
مغز پرېږدي پوټکی عام لټوي
ده حقيقت په سل حصو تقسيم کړو
څه يې په "تلو" په اوربدو تقسيم کړو
په لا مکان کښې يې مکان پيدا کړو
وخت يې تر ملا لکه ترک وتړلو
په خپل ضمير کښې يې وخت ونه ليدو
په ورځو، شپو، لمر او سپوږمۍ پسې شو

دا ورځې شپې دي حقيقي مه ګڼه
د "کم لبثتم" په مطلب اورسه
له ګنې خوا ته شه د ځان په خوا شه
خپله په خپل ضمير دننه راشه
جان و بدن ته دوه ويل کلام دی
جان و بدن جدا ليدل حرام دی
په روح کښې راز د دې جهان سنبال دی
بدن نور څه دی خو د ژوند يو حال دی
معنیٰ په شکل د صورت کښې راغله
خپل نمايش ته يې جامه واغوستله
حقيقت خپله څو پردې جوړوي
ښه په تکليف را وتل خوند ورکوي
فيرنګي جان و تن جدا وليدو
نظر يې بيل دين و دنيا وليدو
کليسا خپلې تسبيح بيلې شماري
د حاکمۍ سره څه کار نه لري
د حاکمانو کار له مکر و فنه
تن بې بې جانه دی او جان بې تنه
دې د عقل سره همسفر کړه

لږ د ترکانو په ملت نظر کړه
د فیرنګي په خوله له ځانه بیل شو
دین و دنیا یې یو ځای ونه لیدو
"یو" مو دا رنګې سل ټوټې ولیدو
چې دې شمېرلو ته مو شمېر پیدا کړو
دنیا یو موټی خاوره ده پرته ده
د یو پاك ذات د سرګذشت ټوټه ده
حکیم له مړو خاورو صورت رغوي
دمِ عیسٰی یدِ بیضا نه لري
په دې حکمت کښې مې زړه هیڅ نه ویني
ځان ته یو بل نوی حکمت لټوي
زه وایم دا جهان یو انقلاب دی
زړه یې ژوندی دی او په پیچ و تاب دی
له دې شمېرلو له شمېرونو تېر شه
ځان نه خبر له جهانونو تېر شه
په دې جهان چې جزو له کل فزون دی
خیال د رازي او د طوسي جنون دی
یو زمانه د ارسطو اشنا شه
یوه لحظه د بیکن هم نوا شه

مګر له دې مقامه مخکښې تېر شه
د دوی له صبح و شامه مخکښې تېر شه
په دې خرد چې بېش و کم پېژني
دننه زره د کان و یم پېژني
دغه جهان د چون و چند قبضه کړه
ماه و پروین ته دې کمند حلقه کړه
بیا بل حکمت زده کړه د دې د پاڅه
د ورځو شپو له مکره ځان وباسه
د تا مقام له زمانې بهر دی
ښی دی د کېن له بهانې بهر دی

%%%

# (4) سوال

قدیم محدث به په څه شان جدا شو
چې یو عالم شو او دا بل خدا شو؟
که هم معروف هم عارف ذات پاك دی
په څه سودا اخته دا مشت خاك دی؟

# ځواب

دخودۍ ژوند دا دی چې بل پیدا کړي
معروف له ځانه خپل عارف جدا کړي
قدیم، حادث زموږ د شمار جادو دی
زموږه شمار د دې روزګار جادو دی
تل د پرون او صبا شمار کوو موږ
په "دی" او "وو" او "وي به" کار کوو موږ
له هغه لرې تلل فطرت دی زموږ
نه رسېدل او سول فطرت دی زموږ
نه زموږ زړه له ده فراق کوای شي
له نه دی بې له موږ قرار کوای شي
نه موږ بې ده، نه دی بې موږ څه حال دی؟
فراق زموږ فراق دی هم وصال دی
جدايي خاورو ته نظر ورکوي
وښو ته دروند وجود د غر ورکوي
جدايي میني ته آئینه ورکوي
جدايي ځکه عاشقان خوښوي
که موږ زنده یو نو د دې په وجه
که پاینده یو نو دې په وجه
نه هغه راز یو د الله د مقام

دوه ګواهان یو موږ زما د دوام
خلوت جلوت کښې هر ځي نور د ذات دی
د انجمن میانځ ته راتلل حیات دی
محبت بې ګنې جهان نه ویني
بې انجمنه دی خپل ځان نه ویني
زموږ محفل کښې تجلي وګوره
دنیا ناپیده دی پیدا وګوره
در و دېوار د خوا و شا نشته دی
دلته څوک بې له ده او ما نشته دی
کله خپل ځان له موږه بیل خوښوي
او کله موږه لکه ساز ږغوي
کله یې د کاڼي نه بتان جوړوو
کله په نالیدو سجدې وروو
کله پردې یې د فطرت څیري کړو
د چا جمال بې باکانه و وینو
دا څه سودا دا موږ خاوره لري
داسي سودا چي ترې نه نور وریږي
داسي سودا چي له فراقه یې ژاړي
بیا هم له دغې امیدونه غواړي

دغه فراق داسي صاحب نظر کړو
چي خپل ماښام يې په خپل ځان سحر کړو
نو دوی ته يې غم د امتحان ورکړو
غم خو يې زور ؤ عېش يې ځوان ورکړو
له لوندو سترګو يې ګوهر را تول کړل
له ترخې ونې يې ثمر را تول کړل
خودي را جوخته کلکه غېږ کښې نيول
فنا بقا په يوه تله تلل
مينه؟ ځولۍ کښې مقامات غونډول
مينه له هري انتها تېرېدل
مينه څه مينه د انجام نه لري
د دې سحر چرته ماښام نه لري
لار کښې د عقل پيچ و خم شته دی
نو د فروغ پکښې يو دم شته دی
زر جهانونه چي دې لار کښې رائحي
زموږه لارې کله سر ته رسي
اې مسافره! تل ژوندی يه تل مره
دنيا چي مخې ته درځي خپلوه
په دې درياب کښې ډوبېدل مو نشته

که جهان خپل کړو ورکېدل مو نشته
خو دی خودۍ کښې ځايېدلای نه شي
خودي له ځانه بېلېدلای نه شي

# (5) سوال

زه آخير څوک يم؟ ما له "ما" خبر کړه
څه معنا "خپله خپل ځان کښې سفر کړه"

# ځواب

خودي تعويذ د حفظ کاينات دی
ړومبۍ جلوه د ده د ذات حيات دی
ژوند چي له خوږه خوبه رو بيدار شي
د زړه دننه يو وي يو بسيار شي
زموږ په وجه د هغه کشود دی
او د هغه په پاك زموږ نمود دی
زړه يي درياب دی نا پيدا کنارې
هره قطره يي بې قراره څپې
ساز و برگ و شکيبايي نه لري

بې له افرادو پيدايي نه لري
خودي بڅرى دى او اور حيات دى
لکه د ستورو يې سفر ثبات دى
له ځانه نه اوري او واړه ويني
د انجمن مينځ کښې يوازي اوسي
ګوره له ځانه يې تاوېدل وګوره
په خاورو ختو رغړېدل وګوره
له سترګو لري ها و هو کوي
څه جستجو د رن‌ګ و بو کوي
د زړه له سوي په جست و خيز اخته دى
له خپله ځانه په ستيز اخته دى
د ژوند نظام په دغه جن‌ګ چليږي،
له موتي خاورو آئينې جوړيږي
د دې جلوو نه يې خودي وريږي
له دې دريابه يې ګوهر را خيزي
پرده خودئ ته دا خاکي پيکر دى
په دې پيکر کښې پټ ختونکى لمر دى
زموږ سينه کښې د دې لمر خاور دى
زموږ د خاورو رڼا دا ګوهر دى

ته وايې ځوك يم؟ ما له "ما" خبر کړه"
څه معنا؟ خپله خپل ځان کښې سفر کړه
زه وايم ربط د تن و جان څه شی دی؟
خپل ځان کښې وګوره چې ځان څه شی دی؟
ځان کښې سفر بې پلار ومور زيږيدل
ستوري له بامه د اسمان شو کول
ابد په يو پرېشانۍ خپلول
بې پلوشو له لمره ښه ښکارېدل
طمع او ويره لکه نقش وينځل
لکه کليم د سمندر زړه چول
د ملك و بحر و بر جادو ماتول
په يوه ګوته د سپوږمۍ زړه چول
له لا مکانه داسي بېرته راتلل
زړه کښې هغه او دنيا لاس کښې راوړل
ولي د دغه راز ويل مشکل دی
ويل تېکرې دی ښيبنه ليدل دی
زه به څه و وايم د "زه" د دنيا
په خپله ولوله "انا عرضنا"
مځکه آسمان د ده له زوره رېي

زمان مكان د ده له شوره رېي
د ده مقام د بنيادم زړګی شو
د موټي خاورو په قسمت کښې دی شو
جدا له نورو وابسطه له نورو
په ځان کښې ورك او پيوسته له نورو
په موټي خاوره کښې د خيال جهان دی
چې بې زمانه دی او بې مکان دی
هم زنداني دی هم آزاد دا څه دی؟
خپله هم صيد دی هم صياد دا څه دی؟
يوه ډيوه ده په سينه کښې د تا
دا څنګه نور دی آئينه کښې د تا
بې پروا مه شه ته د دې آئينې
څومره کم عقل يې چې ځان نه وينې

%%%

# سوال (6)

چې زيات له کله دی دا څنګه جز دی؟
او دغه جز په کومه لار شي موندای؟

# ځواب

خودي زموږ د اندازې نه تېره
خودي د تا ليدلي کل نه ډېره
پاس له اسمانه را وريږي خيژي
د دنيا بحر کښې ډوبيږي خيژي
بې له دې داسي خود نګر نشته دی
د بې وزرو دومره پر نشته دی
په سل تيارو کښې اوسي نور په غيږ کښې
بې له جنته اوسي حور په غيږ کښې
په خوږو تګو پاك سترا وينځلي
د ژوند د تل نه جواهر واخلي
د ژوندون زړه به همېشه ژوندی وي
تا ته په سترګو زمانې ښکاريږي
د ده تقدير د "شته" او "ؤ" مقام دی
د ځان ساتو او د ښيو مقام دی
څه غواړې څه نه دی او څه نه نه دی
د ده تقدير بهر د ده نه- نه دی
د "څه" او "څنګه" له جګړې اوزګار دی

باهر مجبور دی اندرون مختار دی
دغه د بدر د سلطان فرمان دی
ایمان دی جبر و قدر تر میان دی
خلګو ته قید د پابندو واېي
بنده د لرې د نزدو واېي
ولي دا روح دم جان آفرین دی
دومره جلوې لري خلوت نشین دی
د دې د جبر بیان شوی نه دی
چي د آزاد بندیوان شوی نه دی
د کم و کیف جهان بې شا ته پرېښو
د مجبورۍ نه مختارۍ ته لاړو
چي له خپل ځانه مجبوري وشنډي
او خپل جهان لکه ناقه وشړي
آسمان بې حکمه د ده نه ګرځېږي
ستوري بې لطفه د ده نه ځلیږي
یو ورځ بېباکه د زړه راز ښرګند کړي
په خپلو سترګو خپل جوهر و وینې
نوریان همه ورته قطارـ قطار وي
په انتظار ولاړ د ده په لار وي

له ده توی شوي یو څو ځاځکي واخلي
د ده په خاورو دی خپل مس کیمیا کړي
که لار د ده د کتو غوارې دا ده
لږ تر مقام د ها و هو را کوز شه
دا ورځ او شپه دی په ابد اووله
سوږ اسویلی دي په خرد اووله
خرد پنځه واړه حواس اسره کړي
او اسویلي له سینې اور اخلي
خر د جز وګوري اسویلي کل نیسي
خرد به مري او اسویلي به نه مري
خرد ابد را ځایولای نه شي
د ګړۍ ستنه ده وختونه شمېري
ورځې او شپې او سحرونه جوړې
لمبې ترې پاتې شي بځري تولۍ
په اسویلو کښې خزانې پرتې وي
په یو لحظه کښې یې زمانې پرتې وي
خودي چې تول خپل ممکنات ځرګند کړي
غوټۍ د زړه په خپل طاقت و سپړي
کوم نور چې ویني هغه ته نه لرې

اني يې شميرې او فاني يې شمېرې
مرګ که راځي مرګ دي راځي بېباکه
پخه خودي شي له مرګونو پاکه
له دې راتلونکي مرګه نه وېرېږم
دا لا بل مرګ دی چي ترې زه رپېږم
د عشق د ميني له مستۍ پرېوتل
خپلو بڅرو نه اور نه لګول
په خپلو لاسو خپل کفن جوړول
په خپلو سترګو ځان ته مرګ لټول
ستا په تلاش کښې دغه مرګ اخته دی
له دې وېرېږه چي مو مرګ دغه دی
قبر د تا له خپل بد نه جوړ کړي
منکر نکير د زړه دننه جوړ کړي

%%%

# سوال (7)

**مسافر څنګه وي رهرو څه شی دی؟**

**زه چا ته و وايم پوره سړی دی؟**

# ځواب

که د زړه خوا ته سترګې غړوې
خپله سینه کښې به منزل ووینې
دغه په ناستې کښې سفر کول دي
دغه له خپله ځانه ځان ته تلل دي
هیڅوک خبر نه دی چې موږ چرته یو
لمر او سپوږمۍ ته په نظر نه راځو
انتها مه غواړه پایان نه لري
چې انتها ته رسي ځان نه لري
موږ پاخه مه ګڼه تر اوسه خام یو
په هر منزل تمام او نا تمام یو
تر انتها نه رسېدل ژوندون دی
نه ختمېدونکی سفر تل ژوندون دی
کړو له ماهي تر ماهه موږه جولان
د لاري ګرد مو دي زمان و مکان
ځان نه تاوېږو ځان ښیل غواړو
موږ د وجود د سمندر څپې یو
هر وخت د خپل ځان په کمین کښې اوسه

له شکه تښته په یقین کښې اوسه
د محبت د تاب فنا نشته دی
او د یقین څه انتها نشته دی
د ژوند کمال د عین ذات لیدل دي
لا د يې له قیده د مکان وتل دي
داسي د حق سره خلوت نشين يې
چي هغه تا ويني او ته دی ويني
من يراني" په رڼا۔ رڼا شه
پکښې ورک نه شې سترګې مه زنبوه
محکم تېرېږه د هغه په حضور
دوبېږه مه په سمندر کښې د نور
ذرې ته داسي اضطراب و بخښه
چي يې د لمر حريم کښې و ځلوه
داسي د يار په جلوه ګاه کښې سوځه
چي ځان څرګند او هغه پټ بلوه
چا چي عالم "ولید" هغه امام دی
زه "ته" نیمګړي یو هغه تمام دی
که هغه نه مومي تلاش يې وکړه
که هغه و مومي لمن يې نيسه

د شیخ، فقیه او ملا لاس مه نیسه
له دام و جاله غافل مه تېرېږه
د ملك و دین کار ته هغه پیدا دی
چي موږ ړانده یو او هغه بینا دی
لکه خوري پلوشې ختی لمر وي
د ده په هر وېشته کښې یو نظر وي
فیرنګي اینبی دی دستور جمهوري
د دیو له غاړي يې رسۍ پرانستي
نغمې يې نشته دي او ساز نه لري
بې طیارې نه ځي پرواز نه لري
له دې باغونو پټی وران ښه دی
د دوی له شهره بیابان ښه دی
دوی رهزنان دي کاروانونه ګوري
او خپلو خېټو ته نانونه ګوري
روح يې ویده دی او بدن بیدار دی
دین و دانش يې خوار هنر کښې خوار دی
د عقل کار کفر کافر کول دي
د فیرنګیانو فن سړي څیرل دي
د بل خوړو ته هر تولی تیار دی

خدای يې ملګری شه که دا يې کار دی
د مغرب خلکو ته مې دا پيغام دی
چې خل-ک تيغ دی تيغ بې نيام دی
داسې شمشير دی چې سرونه وهي
او مسلمان او کافر نه پېژني
په خپل غلاف کښې په آرام نه اوسي
د ځان او يا د جهان سر پرېکوي

## (8) سوال

کومه نکته بيانوي اناالحق؟
که بې معنا ګڼې دا رمز مطلق؟

## ځواب

د انا الحق نکته به بيا و وايم
هند و ايران ته به رښتيا و وايم
په بتخانه کښې برهمن څه اووې
"ژوند اوغلېدو له ځانه "زه" يې اووې
الله ويده شو ترې نه مورږ پيدا شو

د ده له خوبه موږه اوښکارېدو
دا خوا دېخوا لاندي باندي خوب دی
دا شوق د تللو مخ په وړاندي خوب دی
دا زړه او عقل نکته بين هم خوب دی
ګمان او فکر او يقين هم خوب دی
د تا بيداري سترګې مړې ويدې دي
د تا کارونه او ګفتې ويدې دي
که را بيدار شو هغه بيا څوك نشته
د شوق د ميني د سودا څوك نشته
عقل قياس نه رڼايي اخلي
قياس و حواسو باندي کار چلوي
که حس بدل شو دا عالم بدل دی
سکون او سير و کيف و کم بدل دی
وېلای شو ملك و رن‌ګ و بو نشته دی
زمين اسمان و کاخ و کو نشته دی
وېلای شو دا چي افسانه ده خواب دی
د هغې پورته ذات د مخ نقاب دی
وېلای شو دا د پوهېدو جادو دی
د غوږ د سترګو د پردو جادو دی

خودي د رن-ګ و بو له ملکه نه ده
نه د حواسو په اسره پرته ده
سترګې د دې حرم ته لار نه لري
نظر له دې سره څه کار نه لري
شمير يې په ورځو د فلك نه دی
مل يې تخمين او ظن و شك نه دی
که خيال کوې چې "زه" وهم و ګمان دی
له د هغې او د دې په شان دی
دغه کونکی د ګمان څوك دی
زره کښې دننه بې نشان څوك دی
جهان څرګند دی او دليل غواړي
د جبرييل فکر هم نه ور رسي
خودي ده پټه او دليل نه غواړي
خيال وکړه، پوه شه، دا څه راز کېدای شي
حقه خودي باطله ونه ګڼې
پټې د بې حاصله ونه ګڼې
پخه خودي چيري زوال نه لري
فرق د مين هجر و وصال نه لري
بخري تېز الوزولای هم شي

دا سوی يې لا زوال کولای هم شي
حق ځان ته خپل دوام ګټلی نه دی
ده پيدا کړی او کتلی نه دی
دوام هغه دی چې په سوال غوښتی ځان
په خپله مسته مينه شي جاودان
دا کوه و دښت و منزل هيڅ نشته دی
خودي باقي ده او بل هيڅ نشته دی
څه د منصور شنکر له کاره غواړې
مولا به هم په خپله لاره غواړې
په ځان کښې ورک شه خودي ولټوه
اناالحق وايه د خودۍ مل اوسه

## (9) سوال

څوک د وحدت له رازه ښه خبر شو؟
چې څوک خبر شو نو له څه خبر شو؟

## ځواب

د آسمان لاندي ځای د زړه خوښيږي
خو د دې لمر او سپوږمۍ زر مړه کيږي
د آفتاب لاش دی د ماښام پر اوږو
د سپوږمۍ سپين ټادر کفن د ستورو
غرونه الوزي لکه ريګ روان وي
درياب لحظه په لحظه بل بل شان وي
باد د خزان اخته د ګل په ښکار دی
مرګی ولاړ د قافلې پر لار دی
شبنم لاله ته ګوهر پاتې نه شو
تاج يې د اوښکو پر سر پاتې نه شو
نا اوريدلې نغمې چنګ کښې مري
بخري نه وتی په سنګ کښې مري
څه به پوښتې عالم ګيري د مرګي
زه او ته دواړه ښکيري د مرګي

# غزل

مرګ يې تريخ شراب د هر يو جام کړو
ځومره بې دردۍ سره يې عام کړو
يو تماشه ګاه يې د مرګ جوړ کړو

ملك د لمر سپوږمۍ يې ورته نام كړو
يو نفس كه خوی د تېښتي واخستو
رو په جادوګر نظر يې رام كړو
ما نه قرار څه غوارې چي زړه مي يې
بند په هېر و پېر كښې د ايام كړو
چاك د دې خودۍ سينه كښې وساته
روڼ په دغه ستوري يې ماښام كړو
دا جهان تول د ډوبېدونكو ځای دی
د ستړو ـ ستړو مسافرو سرای دی
زړه مو تلاش كښې د باطل نه اوسي
غم مو سينه كښې بې حاصل نه اوسي
دلته محفوظه هر آرزو لرو موږ
مزې د شوق د جستجو لرو موږ
دا خودي لازوال كېدلای هم شي
دغه فراق وصال كېدلای هم شي
ګرم نفس مو بلوای ډيوې شي
د اسمان څيري ګرېوان بيا ګنډاې شي
رب ژوندی بې ذوقِ سخنه نه دی
جلوې لرې بې انجمنه نه دی

چا دا جلوې ځيګر کښې و ځايولې
چا دا بادې ساغر کښې و ځايولې
د چا په زړه حسن د خوبې کتې شي
چا نه دا لمر او دا سپوږمۍ تاويږي
له کوم خلوته د "الست" آواز دی
"بلیٰ" را وتې بيا د چا له ساز دی
ميني څه اور زما په خاوره ګډ کړو
نوا مي ځو پردو ته اور ورته کړو
چي موږه يو د ساقي جام چليږي
او په مجلس کښې يې ګرمۍ پاتې دي
زړه مي د ده په تنهايي وسولو
د ده مجلس ته مي رونق را غونډ کړو
لکه دانه خپله خودۍ کرمه
د ده دپاره يې ژوندۍ ساتمه

# خاتمه

ته تېره توره يې بهر را ووزه
لړ له نيامه لاس په سر را ووزه
خپل قوتونه را برسېر کړه ته
لمر او سپوږمۍ ستوري را ګېر کړه ته
يدِ بيضا دی له استين بهر کړه
شپه د رڼا ورځ د يقين په لمر کړه
څوك چي په وينو ستړګو زړه ته ګوري
کړي بڅري او بيا ستوري ربېي
زما له زړه ختی بڅری واخله
لکه رومي ګرمه زما نوا ده
کني د نوي تهذيب اور خپل کړه
بهر روښانه شه دننه ومره

%%%

# بندګي نامه

بندګي نامه

سپوږمۍ خپل رب ته یوه ورځې اووې
زما رڼا دا توري شپې ورځې کړې
څو خوږې شپې وې چې بې ورځو شپه وم
د زمانې زړه کښې ویده پرته وم
ستوري زما په مرحلو کښې نه وو
او ګردشونه زما پښو کښې نه وو
نه مي صحرا ته آئینې ورکولې
نه مي بحرونو ته څپې ورکولې
اُف دا فیرنګ او دا جادو د وجود
اُف دا رڼا او دا خواهش و نمود
له لري لمر نه مي رڼا واخسته
بیا مي دې مړو خاورو ته وبخښله
دا رڼې خاورې چې یې ورك فراغ دی
د غلامۍ نه یې مخ داغ په داغ دی
بنیادمان یې جال کښې نښتي ماهي
چې یزدان وژني او آدم ښکلوي
تا د یو آب و ګل بنده کړمه زه
په دې طواف دي شرمنده کړمه زه
دا ځای له خپل نوره خبر نه دی

دا ځای لایق د سپوږمۍ لمر نه دی
دا په دې شنه فضا کښې تار په تار کړه
او موږ نوريان د دې نه زر اوزګار کړه
يا مي له دې خدمته زر رها کړه
يا له دې خاورو بل آدم پيدا کړه
زما رڼا سترګې رندې ښې دي
خدايه په دې ملك کښې تيارې ښې دي
د غلامۍ نه زړه بدن کښې ومري
په غلامۍ کښې روح په جسم بار شي
د غلامۍ نه ځوان ځلمی بوډا شي
د شين زمري بې وخته غاښ پرېوزي
په غلامۍ کښې ملت تار په تار شي
دی له هغه هغه له ده بېزار وي
يو په سجده کښې وي او بل په قيام
لکه د جمع لمونځ بغير له امام
هر يو د بل سره په جن‌ګ اخته وي
او هر يو ځان ته نوی غم کړه وي
د حقې مل ځلمی زنار وتړي
يکتا ګوهر بې له قيمته پرېوځي

ځانګې يې پاڼي او ثمر نه لري
ژوند يې بې مرګه بل اثر نه لري
کور ذوقه زهر لکه نوش خوښوي
بې مرګه مړ ځان په اوړو ګرځوي
د ژوندون قدر آبرو نه پېژني
لکه د خرونو په وښو پسې مري
ممکن يې وګوره محال يې ګوره
تللي راغلي ماه و سال يې ګوره
ورځې يې د ورځو په ماتم تېرېږي
رو يې له شګو نه قدم تېرېږي
شاړه صحرا لشې لشې لړمان
غټ غټ مېږي د سرو مارانو ښکاريان
سوی صرصر و سور دوزخ له اوره
سپېرې ځپې له نامراده کوره
په سره هوا کښې د بڅرو شعلې
لمبې لمبو نه چار چاپېره لمبې
ترخو لوګو کښې سره او توره هوا
د تندر ګړځ د دريابونو غوغا
په کنارو کښې يې ماران په قهر

چڃې چڃې ماران او زهر زهر
له لېوني سپي نه چيچونکې لمبې
بند په بند سوونکې وېرووونکې لمبې
په داسي قهر کښې سل عمره ژوندی
د غلامۍ د يو لحظې نه ښه دي

# د غلامانو د فنون لطيفه بيان کښې موسيقي

د غلامۍ فنونه دي مرګونه
زه به څه و وايم له دې فسونه
د ژوند له اوره بې نغمې خالي دي
لکه څپې د ژوند دېوال نړوي
د غلام زړه کښې په هر خوا تېرې وي
لکه د ده د ده نغمې ويدې وي
زړه يې مړژواندی دی او شون نه لري
ذوق د صبا مزه د نن نه لري
د زړه رازونه يې آواز کښې ښکاري
يو مړه دنيا د ده په ساز کښې ښکاري
بې ساه، ناتوانه او زار زار به وکړي

له دنيا لاس ختی بېزار به وكړي
سرې اوښكې ستركو ته د ده رانجه دي
د اودرېدو نه تښتېده ترخه دي
را نغښتی مرګ د ده ساز دی او بس
نشت يې پټ كړی په آواز دی او بس
نشته! زمزم په دې حرم كښې نشته
بل څه بې مرګ يې زېر و بم كښې نشته
د زړه نه سوز وركوي غم وركوي
زهر جامونو كښې د جم وركوي
غم په دوه قسمه دی اې وروره! واوره
د زړه ډيوه په دې لمبه بله كړه
يو هغه غم دی چې كوم غم آدم خوري
يو هغه غم دی چې هر رنګې غم خوري
دا دويم غم چې زمونږ هم دم دی
روح مو آزاد په ده له هر يو غم دی
ده كښې دی شور و شر د غرب و د شرق
هر يو موجود په دې درياب كښې دی غرق
چې كله كله دی پر زړه ډېره شي
زړه يو خوره بې كنارې چپه شي

په دغه راز غلامي نه پوهیږي
له دغه غمه يې نغمې تشې دي
نه وايم دا چې يې نوا خطا ده
کونډې ته دا رنګې ژړا روا ده
نغمه د تندر د سېلاب غوندي وي
چې له زړګي جمله غمونه يوسي
نغمه په کار ده لېونتوب پاللي
د زړه په وينو کښې په اور لړلې
چې يې په نم باندي نغمې لوييږي
او خاموشي يې يوه برخه کيږي
پوه يې؟ سرود هغه مقام ياديږي
چې پکښې بې ټکو کلام ټوکيږي
سپينه نغمه بله ډيوه د فطرت
د دې معنا نقش بندي د صورت
معنا خبر نه يم له کومي راغله
خو رنګ يې پيژنم زما اشنا ده
که معنا نه لري نغمه نو مړه ده
د زړه له سوزه بې پروا ويده ده
د معنا راز پير رومي څرګند کړو

فکر مي ده ته په سجدو پرېوتو
"معنا هغه ده چي پوره واخلي تا
له هره نقشه بې نیازه کړي تا
معنا دا نه ده چي تا کور و کر کړي
په صورتونو ښنخ د تا نظر کړي"
زموږ مطرب دا نوا ونه لیده
نقش یې خوښ کړو او معنا يې پرېښوه

%%%

# مصوري

دا عجیبه "صورت ګري" ده خلقه
ابراهیمي، نه آذري ده خلقه
بوډا راهب جال د هوا و هوس
رنګین دلبرو شین مارغه د قفس
یو شهنشاه د یو فقیر مخې ته
کوهستانی د لرګو بار پر اوږه
یو نازنین د بتخانې په خوا کښې
جوګې یوازي په خوره صحرا کښې

بوډا د خپلې ضعيفۍ نه داغ داغ
چې يې په لاسو کښې مړ کيږي څراغ
يو مطرب مست په بيګانوو نغمو
چې تا رټې سست شي د بلبل په چغو
ځلمى د مست نظرو غشي نخښنه
ماشوم سور شوى د بابا پر اوږه
د هر قلم په خوله مضمون د مرګ دى
يو افسانه ده او افسون د مرګ دى
علم حاضر سجده فاني ته کوري
شک زياتوي له زړه يقين تښتوي
بې له يقينه تحقيق نه شي کېداى
بې له تحقيقه تخليق نه شي کېداى
د بې يقينه زړه سينه کښې رټې
او نوى نقش ورته ګران ښکاريږي
له خودۍ لرې دى بيمار دى او بس
خلګو پسې روان په لار دى او بس
خيرات د حسن له فطرته غواړي
رهزن دى لاره د تش لاسو وهي
ځان نه بهر حسن کتل خطا دى

څه چې په کار دی تا ښکنبې دی د تا دی
چې نقش ګړ قلم فطرت ته ورکړې
خپل ځان فنا کړي او د بل په لاس شي
یو لحظه هم له ځانه رن‌ګ وا نخلي
په شیشه خپل کاڼی ونه ازمایي
فطرت اووه رنګه څادر اغوستی
ښکنبېي د ده په کاغذ ګوډ پښې ماتې
د پتنګ زړو ښکنبې يې هم سون نشته دی
د صبا عکس يې په نن نشته دی
نظر يې وتې له افلاکه نه دی
زړه په سینه ښکنبې يې بېباکه نه دی
خاکسارو بې حضور و شرمګین دی
باقي له صحبت روح الامین دی
خیال يې ناداره او بې ذوق ستیز
د اسرافیل آواز يې بې رست و خیز
ځان چې آدم کله خاکي و شمیري
د یزدان نور د ده په زړه ښکنبې ومري
چې له خپل ځانه بهر دا موسیٰ شي
لاسونه يې نور شي او رسۍ عصا شي

د ژوند قوت بې له اعجازه نه دی
خو څوك خبر له دغه رازه نه دی
هغه ژوندی چې په فطرت څه زيات کړي
زموږه سترګو ته خپل راز وښايي
ګرچه درياب يې احتياج نه لري
زموږ چينې ورته خراج رسوي
يوسي آرام د زمانې له زړه نه
هر يو نګار واخلي ژوندون د ده نه
حور يې له حوره د جنت بهتر دی
د دې بتانو نه منکر کافر دی
پيدا کړی نوی کاينات پيدا کړی
مړه شوو زړونو کښې حيات پيدا کړي
بحر يې موج سره ټکرې وهي
څپې يې دې خوا ته ګوهر غورځوي
له خپلو ډکو خزانو چې لري
د هر يوه تشه لمن ډکوي
د ده فطرت د ښه او بد عيار دی
د ده صنعت د دې آئينه دار دی
هم ابراهيمυ دی دې او هم آذر دی

هم بت شکن دی دې او هم بتګر دی
هره ذره بنا صفا غورځوي
او موجوداتو ته ځلا ورکوي
په غلامۍ کښې تن له جانه تش شي
له تش بدنه به څوک څه ويني
ذوق د ایجاد او د نمود ترې ورک شي
آدم له ځانه بې خبره سپک شي
که جبرئیل هم څوک يو ځل غلام کړي
د آسمانونو نه به کوزه پرېوزي
د غلام کار تقلید او آذري ده
جدت د ده په خیال کښې کافري ده
تازه تازه يې د زړه شک زياتوي
زاړه زاړه او وران او وران خوښوي
تيارو ته ګوري آينده نه ويني
د منجاور غوندي په قبر پاتې
دغه هنر د تمنا فنا دی
دننه سخا دی او بهر صفا دی
هوشيار مرغی پکښې ځان نه نښلوي
که څوک جالونه د رېښمو جوړ کړي

# دغلامانو مذهب

د غلامۍ مینه مذهب جدا وي
د ژوند ګټین يې بې مزې وي سخا وي
مینه توحید اول په زړه وهل دي
بیا پکښې حل د هر مشکل کتل دي
د غلام مینه بس د خولې خبرې
د خولې خبرې او له کاره لرې
د شوق کاروان يې بې له ذوق د رحیل
بلا یقین او بې سبیل او دلیل
دین و دانش غلام ارزان ورکوي
بدن ژوندی ساتي او ځان ورکوي
څه که په شونډو يې د خدای نامه ده
فرمان روا طاقت د ده قبله ده
طاقت قوت يې بافروغه دروغ
چې پیدا کیږي تر دروغ او دروغ
څو يې سجده کوې دا بت مولا دی
چې ترې نه ودرې فاني فنا دی
هغه خدای نان ورکوي جان ورکوي

دغه خدای نان ورکوي جان تښتوي
هغه خدای یو دی او دې سل ټوټې دی
هغه د هر چا خپل دی دې پردې دی
هغه علاج د سوز او غم او فراق
دا خدای خبري او جګړې او نفاق
دا خدای د ځان سره بندیان خوګر کړي
سترګې او غوږ او هوش یې ټول کافر کړي
چې په بنده پوره د ده اختیار شي
جان یې له تنه په تن کښې ویزار شي
بې ساه ژوندی وي او ژوندی وي بې ساه
درته بۀ وښیم رنګینه معنا
دا مړه کېدل او دا حیات د نفس
واړه څو اعتبارات دي او بس
ماهي ته غر نشته صحرا نتشه دی
مرغۍ ته تل نشته دریا نشته دی
کوڼ د نوا په معنا نه پوهیږي
په خوند د صوت و صدا نه پوهیږي
ړانده په صوت و په صدا مستیږي
او له رنګونو بې پروا تېریږي

روح وي د حق سره زنده پاینده
کني نو ده ته مړه هغه ته زنده
چي "حي لا یموت" دی هغه حق دی
حیات د حق سره حیات مطلق دی
چي ژوند بې حقه تېروي مردار دی
د دې ژوندي سړي ماتم په کار دی
ډېر د لیدو یې له نظره پټ وي
زړګی یې شوق د انقلاب نه لري
د مشتاقۍ سوز یې کردار کښې نشته
د آفاق نور یې په ګفتار کښې نشته
تن-ګ یې مذهب وي کله تن-ګ یې آفاق
د شپې نه زیات توره تیاره یې اشراق
ژوندون یو بار ښکاري د ده پر اوږو
مرګ لویوي ځان ته په خپله جولو
مینه د ده په خوا کښې وي آزرده
اور یې په یخو اسویلو افسرده
لکه چینجی د ختو تل کښې اوسي
لمر او سپوږمۍ او آسمان نه پېژني
له غلام مینه د دیدار مه غواړه

په غلامۍ کښې زړه بیدار مه غواړه
سترګو يې د هيڅ ليدو کوشش ونه کړو
ډېره يې وخوړه ويده شو مړ شو
حکمرانان که تر يو بند پرانزي
روح ته يې نوري زولنې واچوي
غوټه په غوټه آئينو نه جوړ کړي
لکه د زغري يې در واغوستوي
کينه او قهر شور و شر ور وښيئ
له ناڅاپي مرګه خطر ور وښيئ
چي د غلام له ځانه لاس وخيزي
او په سينه کښې يې آرزو ويده شي

## ق

بيا نوي خلعتونه ورکړي
د ده په لاس کښې څو کارونه ورکړي
مهرې په ځای ځای رسا ورسوي
او خپل پياده تر باچا ورسوي
په نعمتونو يې رن‌ګ رن‌ګ شي راکړي
په نن يې موړ کړي ترې نه هېر صبا کړي

بدن يې دروند شي د باچا په مهر
او روح يې ورك شي په سختۍ په قهر
که يوه روح ته پرې آزار رسيږي
ښځ ده که ښار ښار بدنونه مړه شي
زولنې پښو کښې نه دي زړونو کښې دي
ګران دا غمونه په غمونو کښې دي

%%%

# دآزادوآبادۍ

وخت کړه لږ تېر له تېرو خلکو سره
د آزادانو صنعت هم وګوره
کار د ايبک او د سوري ووينه
که زړه لرې سترګې دي وغړوه
ځان يې له ځانه را بهر ځرګند کړو
عالم يې تول په تماشه ودريدو
کاڼي يې د کاڼو سره ولګول
اوږده وختونه يې په لمحو وتړل
په يو ديدن باندي به تا پوخ کړي

له دې جهانه به د بل ته یوسي
نقش به خبر د نقش ګر ورکړي
د ده د زړه نه به خبر ورکړي
بلنده طبعه او همت مردانه
د کانو زړونو کښې لعلونه دي دوه
دا سجده ګاه د چا دی؟ دا مه پوښته
ناپوهه! تن نه حال د ساه مه پوښته
زه خو له خپل ځانه حجاب کښې پروت یم
او د فرات په کناره تږی یم
زه خو له جرې او له وېښنه وتی
لرې له خپله ځایه وچ پرېوتی
بې له یقینه زړه محکم نشته دی
د یقین ځانګو کښې مې نم نشته دی
په ما کښې ذوق د الا الله نشته دی
سجده شایان د دې درګاه نشته دی
یو ځل هغه ګوهر ناب وګوره
تاج پلوشو کښې د مهتاب وګوره
مرمرۍ تېز ځي له روانو اوبو
یوه لحظه تېره تر زمانو

د سرو میني خپل اسرار ویلي
کاڼي يې په څوکو د ښو پیيلي
د سرو مینه له جنته خوږه
د کاڼو خښتو نه وباسي نغمه
د سرو عشق دی د خوبانو معیار
هم پرده در د حسن هم پرد دار
همت يې پورته له آسمانه تېر شو
د چون و چند له دې جهانه تېر شو
چې ټول لیدلي يې په خوله نه راتلو
زړونه يې په بله طریقه وسپړدو
له محبته جذبې پورته خیژي
ناکامیابیان پر کامیابۍ اخلي
بې محبته ژوند ماتم دی او بس
کار يې ناکاره نا محکم دی او بس
محبت عقل ته صیقل ورکوي
مینه له کاڼي آئینه جوړوي
زړګي لرونکو ته سینا ورکوي
دمِ عیسیٰ، یدِ بیضا ورکوي
شکست خورده ورته ممکن او موجود

دی خوږ او تریخ تمام جهان د نمود
زموږه خیال ګرم د ده په نار دی
پیدا کول ژوندي کول يې کار دی
عشق هر څه، هر بنیادم ته بس دی
یوازي دی همه عالم ته بس دی
دلبري بې قهري جادوګري ده
د قاهرۍ سره پیغمبري ده
دواړه د یو بل مشغولا کړه میني
جوړه دنیا کښې یو دنیا کړه میني